خواږهٔ او ښکلی نعتونه

# حقیقی جانان ﷺ

محمد رسول الله







مولانا احمدعلی مردانی



خورونکے

اسلامی ادبی ټولنه

یونیورستی روډ مردان 0312-9818511

حقیقی جانان ﷺ

تصنیف

ابوالقاسم احمد علی مردانی

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

خوارۀ اوښکلی نعتونه

# حقیقی جانان

## یعنی محمد رسول اللہ ﷺ

لیکونکے

مولانا احمدعلی مردانی

صدارتی ایوارډ یافته

خپرونکے

اسلامی ادبی ټولنه

یونیورسټی روډ مردان 0312-9818511

# هر چاته ئې دَ چهاپ کُولو اجازت دے


| | |
|---|---|
| دَ کتاب نوم | حقیقي جانان (نعتونه) |
| صفحات | 288 |
| مصنف | مولانا احمدعلی مرداني |
| نظرثاني | جناب مهر اندیش صیب |
| کتابت | النور کتب خانه<br>[redacted]<br>0312-9818511 [redacted] |
| پبلشرز | مکتبه عشره مبشرهؓ لاهور |
| دَ چهاپ کال | جنوري 2018ء |
| بیعه | 350 روپۍ |
| دَ ملاویدلو درك | علي اینټرنیټ کلاته سنټر<br>یعقوب خان پلازه<br>کجو خان بازار مردان |


## دَ میلاویدلو درکونه

★ مکتبه مجدد الف ثانيؒ کامران مارکیټ نیواډه مردان

★ اسلامي کتب خانه کامران مارکیټ نیواډه مردان

★ مکتبة الحسن کامران مارکیټ نیواډه مردان

★ دَ ادبي دوستانو مرکه مردان

★ جامعه احیاء العلوم نسته روډ مردان

★ دارالعلوم اصحابِ صفهؓ رنګ روډ مردان

★ حافظ عبدالناصر خوره بانډه یونیورسټي روډ مردان

★★★★★★★★★★★★★★★★★★★★★★★★★

★ دَ مردان په هره غټه کتب خانه کښې میلاویدے شي .

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# وړومبی خبرې

**الحمد اللّٰه ربّ العٰلمین والصلوٰة والسلام علی رسوله محمد واٰله واصحابه اجمعین . امابعد**

عبادت کهٔ قولي دے او که فعلي دے دَ خیر او دَ اجرِ عظیم نه خالي نهٔ دے دَ نعت تعلق دَ عباداتِ قولیه سره دے یعنې دا داسې عبادت دے چې په ژبه سره ادا کیږي او دَ ژبه په ذریعه د دغې عبادت خوند او مزه اغستلی شي ، دَ ژبې په ذریعه دَ مولیٰ دَ رضا سره سره دَ حضرت محمد مصطفیٰ ﷺ رضا دَ حاصلولو کوشش کیږي . دَ نعت په ذریعه انسان روحاني منازل سر کوي او هغه لویو لویو مرتبه ته رسي . دَ کومو مرتبو چې انسان تصوّر هم نهٔ شي کولے . څنګ چې دَ حمد په ذریعه قُربِ الٰهي ملاویږي دغه شان دَ نعت په ذریعه قُربِ محمدی ﷺ ملاویږي او یقیناً قُربِ محمدی دَ اللّٰه تعالیٰ په نعمتونو کښې یو لوئې نعمت دے ددغه نعمت دَ حاصلولو دَ پاره په هر زمانه کښې دَ نبی کریم ﷺ امتیانو ، عُشاقو په جُدا جُدا انداز سره دَ نبی کریم ﷺ مدح وصفت بیان کړے دے . بیا په دوی کښې بعضو دَ شعرونو په ذریعه او بعضو دَ نثر په ذریعه دَ حضرت محمد ﷺ مدحه بیان کړے ده . او دغه سلسله به تر قیامته پورې جاري وي . ما هم د دغې مقصد دَ حاصلولو دَ پاره دَ نعتونو اولني دري مجموعي ( اولني

مجموعه: رڼا دَ سحر، دويمه مجموعه: ښُکلا دَ چمن، دريمه مجموعه: دَ زړهٔ سکون) او دا څلورمه مجموعه (حقيقي جانان) ليکلے ده. دَ مولیٰ کريم ﷺ نه دُعا ده چې دا ټولې مجموعې په خپل دربار کښې قبولې منظورې کړې او د دې په ذريعه دے ماته او زما مور او پلار، روڼو خويندو، بچوته دغه شان زما ملګرو او استاذانو ته قربِ محمدی ﷺ نصيب کړی. زهٔ دا خبره الحمد لله ډير په فخر سره کوم چې ما په دې ټولو کتابونو کښې هريو نعت دَ قرآن وسنت په تله تللے دے او زهٔ اُميد ساتم چې انشاء الله زما ددغې ټولو کتابونو هريو حرف به دَ قرآن کريم او دَ سنتِ رسول ﷺ موافقت کوی.

والله الموفق والمعين. وعلى الله فليتوكل المتوكلون. ربنا تقبل منا انك انت السميع العليم وتب علينا انك انت التواب الرحيم. وصلى الله تعالىٰ علىٰ خير خلقه محمد واله واصحابه اجمعين.

دَ دُعاګانو طلبګار

**ابوالقاسم احمدعلی مردانی**

فاضل جامعة العلوم الاسلاميه علامه محمد يوسف بنوریؒ ټاؤن کراچي وايم اے عربي عبدالولي خان يونيورستی مردان)
اُستاذ ګورنمنټ پرائمری سکول ليبر کالونی مردان
يونيورستی روډ خوره بانډه مردان 0312-9818511

# بسم اللّٰه الرحمٰن الرحیم

## حمد باری تعالیٰ

ډیر عالی دے نوم اللّٰه
جلالی دے نوم اللّٰه
وایه هر سحر ماښام
وایه وایه تل مدام
کمالی دے نوم اللّٰه
ډیر عالی دے نوم اللّٰه
ذکر تل دَ هر ولی
ذکر تل دَ هر نبی
جمالی دے نوم اللّٰه
ډیر عالی دے نوم اللّٰه
زړونو له دے اطمینان
تل سکون دَ ټول جهان
لاثانی دے نوم اللّٰه
ډیر عالی دے نوم اللّٰه
علیم دے هغه معلوم
نهٔ نکته په دغي نوم
پاك خالی دے نوم اللّٰه
ډیر عالی دے نوم اللّٰه

نور رنا دَ هر بشر
اے احمده! په هر در
يَو والى دے نوم الله
ډير عالى دے نوم الله

## حمد باری تعالیٰ

رب دَ هر يو تن، اَلله
رب دَ هر وطن، اَلله
رب دَ هر يو ګل غوټي
رب دَ هر چمن، اَلله
رب دَ هر سحر ماښام
رب دَ ماسخوتن، اَلله
رب دَ اولياء ټولو
دَ حضرت حسنؓ، اَلله
وائى هر قلم داسي
تل عالى سُخن، اَلله
دا دے دَ احمد بيان
شته په هر مسكن، اَلله

## حمد باری تعالیٰ

يو دے دَ عالَم، اَلله
تل سكون هر دم، اَلله

هادي دَ دُنيا هغه
هادي دَ هرچا هغه
مَل دَ هر يو غم ، اَلله
يو دے دَ عالَم ، اَلله

هر څوك ئي صفت كوي
هر ځائے هر ساعت كوي
په عرب عجم ، اَلله
يو دے دَ عالَم ، اَلله

شافي او كافي هغه
هرچا نه عالي هغه
نُور دَ هر تورتم ، الله
يو دے دَ عالَم ، اَلله

لاثاني صفات لري
لاشريكه ذات لري
نوم دے ډير اهم ، اَلله
يو دے دَ عالَم ، اَلله

وائي تل احمد داسي
هر څوك نيك او بد داسي
ياد دے په قلم ، اَلله
يو دے دَ عالَم ، اَلله

# حمد باری تعالیٰ

یو دے یو زمونږه ربَ
نۀ لری هغه نسب
نۀ والد دے نۀ مولود
محتاج نۀ دے دَ سبب
په یو کُن پیدا کوُل کړی
په کښې نشته څۀ عجب
دَ هر چا مشکل کشا دے
دَ عجم او دَ عرب
نشته یو څیز تر نه پټ
نۀ دَ ورځې نۀ دَ شب
دَ هر یو صفت خالق دے
په دُنیا دَ هر مذهب
هر نبی ئې رالیږلے
تقسیم کړے ئې ادب
اے احمده! ربَ شته ربَ
ملاویږی په طلب

## حمد باری تعالیٰ

یو دے یو دَ الله ذات هغه قدیر

نـــهٔ مثـــال لـــری دُنیـــا کښـــې نـــهٔ نـظیــر
دَ هـــرچـــا نـــه ښــهٔ خبـــر دَ هـــریـــو درد ے
یـــو صـــفـــتـــ لـــری صـــفـــاتــو کښـــې خبیـــر
پـــه مـعـــمـــار ســـره یـــادیـــږی دَ جهـــان
مـــصـــوَر د ے بهتـــریـــن دَ هـــر تـــصـــویـــر
خیـــر او شـــر ورســـره لاس کښـــې پـــه جهـــان دی
تـول لیـکـلـے ئـي زمـونـږه د ے تـقـدیـر
هـریـو کـار صـرف پـه کُـن سـره ئـي کیـږی
مـدَبـــر د ے دَ جهـــان دَ هـــر تـــدبیـــر
رنګ پـه رنګ ئـي مـخـلـوقـات دی پیدا کـړی
پیـدا کـړے ئـي مـنـکـر سـره نـکیـر
هـرنبـی ئـي رالـیـږلـے خـبـر دَ پـاره
کـهٔ بشیـر د ے دَ جهـان او کـهٔ نـذیـر
ا ے احـمـدعـلـی ! مـحتـاج ئي تول مخلوق د ے
کـهٔ مـالـدار د ے دَ جهـان او کـهٔ فـقیـر

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

تـورو تیـارو کښـې مـصـطـفـیٰ ﷺ سـحـر د ے
تـل پـه دُنیـا کښـې دَ هـر چـا سـحـر د ے
دَ هـدایـــت د دي جهـــان رڼـــاده
زمـونـږ نبـی ﷺ رڼـا رڼـا سـحـر د ے

دَ هـــــريــــو لارې دَ دُنيـــــا رنـــــا ده
دلتـــــه زمـــا ورســـره ستـــا ســـحـــر دے
دَ دې جهــــان دَ هـــريـــو كـــور رنــــا ده
پـــه دې دُنيـــا كښـــې يـــو جُدا ســحــر دے
دَ گـــمـــراهـــى تيـــارۀ پـــه دُوى تـــلــــې ده
داســـے دُنيــا كښـــې يــو طــــٰـه ﷺ ســحــر دے
رنـــــا رنـــــا دَ هـــــرعـــــالـــــم ولــــى ده
داســـے دُنيــا كښـــې مـجـتبـىٰ ﷺ ســحــر دے
دَ ربَ احســـــان پـــــه تــــــا احـــمــــده ! دے نـــن
چـــې ستـــا دَ در خيـــر الـــورىٰ ﷺ ســحــر دے

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

ښائست دَ محمد ﷺ پـه گلدستو كښې نه ځائيږي
دُنيا كښې ئې ښائست په باغيچو كښې نۀ ځائيږي
پـــه خپلـو او پـردو بـاندې بـېحده مهـربـان دے
دا مينـه دَ جهـان ئـې پـه سينو كښې نـۀ ځائيږي
رنـــائـــې دَ رخســـار ده هـــر طـرف تـــه پـــه جهـــان
ښائست دَ تـورو زلفو ئې پـه شپو كښې نـۀ ځائيږي
لـــه عـــرش نــــه بـــره تـلـــے بـــره تلـــے دے پـــه بـــره
مقام ئې دَ جهان زمونـږ جملو كښې نـۀ ځـائيـږي
اعــلــىٰ دے ډيــر اعــلــىٰ داسې احمد دَ جهــان وائــي

مقام ئې دَ جهان زمونږ مازغو کښې نۀ ځائيږي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

په مدينه کښې دَ جنت يوه ټکړه پرته ده
ښکلي ښائسته دَ محمد ﷺ ښکلي روضه پرته ده
دغه ټکړه ښکلي ښائسته ده لاثانی په جهان
دغه ټکړه ښکلي ښائسته ده په دُنيا عالیشان
په مدينه کښې دَ جنت يوه حصه پرته ده
په مدينه کښې دَ جنت يوه ټکړه پرته ده
پاکه روضه دَ محمد ﷺ ده انوارات دی په کښې
پاکه روضه دَ محمد ﷺ ده برکات دی په کښې
داسې ګڼه چې دَ ګلونو ګلدسته پرته ده
په مدينه کښې دَ جنت يوه ټکړه پرته ده
دغه دُنيا کښې دَ دُنيا دَ بيقرارو ځائے دے
دَ پاك رسول ﷺ دَ ښکلو ښکلو دَ اَثارو ځائے دے
په هره لاره مدينه کښې يو جذبه پرته ده
په مدينه کښې دَ جنت يوه ټکړه پرته ده
دا دے مرکز دَ رنګ په رنګ دَ نعمتونو دَ ربَ
دا دے مرکز دَ رنګ په رنګ دَ رحمتونو دَ ربَ
ډکه دَ نور دَ مدينې هره کوڅه پرته ده
په مدينه کښې دَ جنت يوه ټکړه پرته ده

دلته دي مينه محبت دَدي دُنيا دَ پاره
دلته دي مينه محبت راشه هرچا دَ پاره
دلته دَ مينې محبت يوه نشه پرته ده
په مدينه کښې دَ جنت يوه ټکړه پرته ده
دَ مدينې خلقو ليدلي دي آثار دَ نبي ﷺ
دَ مدينې خلقو ليدلي دي انوار دَ نبي ﷺ
دَ پاك نبي ﷺ په دغه خاورو سجده پرته ده
په مدينه کښې دَ جنت يوه ټکړه پرته ده
احمده ! داسې په دُنيا کښې بل مکان نهٔ وينم
داسې دُنيا کښې يو مکان زهٔ عاليشان نهٔ وينم
دَ رحمتونو دلته کښې يو سلسله پرته ده
په مدينه کښې دَ جنت يوه ټکړه پرته ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

په مدينه کښې ياره ياره اوسه
دغه حصه کښې ياره ياره اوسه
دلته مسکن ښکلې مدفن دَ نبي ﷺ
دلته شائسته ښکلې چمن دَ نبي ﷺ
دلته سجده کښې ياره ياره اوسه
په مدينه کښې ياره ياره اوسه
دا دَ عزت او احترام کور دے

دا دَ درود او دَ سـلام كـور دے

پـه دي مـزه كښـي يـاره يـاره اوسـه

پـه مـديـنـه كښـي يـاره يـاره اوسـه

دلتـه يـاران دَ مـحـمـد عـربـی ﷺ

شتـه عـاشـقـان دَ مـحـمـد عـربـی ﷺ

ښـهٔ تـذكـره كښـي يـاره يـاره اوسـه

پـه مـديـنـه كښـي يـاره يـاره اوسـه

دلتـه جـمـال دَ مـحـمـد عـربـی ﷺ

دلتـه دے آل دَ مـحـمـد عـربـی ﷺ

دي سـفـيـنـه كښـي يـاره يـاره اوسـه

پـه مـديـنـه كښـي يـاره يـاره اوسـه

زهٔ احـمـد دي سـره خـوشـحـالـه يـمـه

زهٔ ئـي خبـر دَ هـر كـمـالـه يـمـه

پـه دي نشـه كښـي يـاره يـاره اوسـه

پـه مـديـنـه كښـي يـاره يـاره اوسـه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مـحـمـد خيـر البشـر ﷺ دے زمـا خـوښ

دَ نبيـانـو دا افسـر دے زمـا خـوښ

يـاران ډيـر لـری دُنيـا كښـي پـه جهـان

خـو ډيـر زيـات صـديـق اكبـرؓ دے زمـا خـوښ

دَعدل په باب کښې ډیر مخلوق تیر شوے
تل دغی باب عمرؓ دے زما خوښ
دَعثمانؓ دَسخاوت مثال نه وینم
دا عظیم صفت بشر دے زما خوښ
دَعلیؓ دَشجاعت مثال به نه وی
دا حضرت علی حیدرؓ دے زما خوښ
امامانو کښې هریو امام ښائسته دے
خو نعمانؓ په هریو در دے زما خوښ
اے احمدعلی ! خبرونه ښائسته ډیر دی
خو خبر دَ پیغمبر ﷺ دے زما خوښ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښائسته ښکلي دَنبیانو سلسله ده
دا ښائسته دَپاك رسول ﷺ په تذکره ده
هر سنت دَ محمد ﷺ سکون راحت دے
شیطانانو باندې دغه زلزله ده
طریقه دَ محمد ﷺ رڼا رڼا ده
مثالی دا په دُنیا کښې طریقه ده
هریو قول دَ محمد ﷺ ښائسته دے ښکلے
دَآخر دَژوند دَپاره دا توښه ده
په افعالو دَنبی ﷺ جهان ښائسته دے

ښائسته دوی سره دُنیا کښې باغیچه ده
هر یو فعل ئې په شان لکه دَ ګل دے
جوړه شوي ترینه ښکلي ګلدسته ده
اے احمد علی! هر یو صفت شته دلته
ما لیکلے دَ صفاتو مجموعه ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

محمد ﷺ زما حبیب
معلم دے هم طبیب
دَ هر چا دَ زړۂ سرور
عام انسان دے کۀ خطیب
دیتیم مجبور ملګرے
مهربانه په غریب
ژوند ئې ښکلے په ترتیب
پاك له عیبه په جهان
ربَ ته ډیر زیات دے قریب
په وجود خوشبو خوشبو
چا ته چې شی دا نصیب
احمد وائی تول ادب
داسے لیکی هر ادیب

# نعتِ مصطفیٰ ﷺ

په خوب کښې مې چې سيدالابرار ﷺ وليدهٔ
قسم دے دَ نبيانو مې سردار ﷺ وليدهٔ
حيران شومه قدرت ته زهٔ دَ خپل پروردېګار
حيران شومه قدرت ته زهٔ دَ پاك غنی غفار
مقام دَ محمد ﷺ مې چې يو وار وليدهٔ
په خوب کښی مې چې سيدالابرار ﷺ وليدهٔ
مقام لری اوچت له هر آسمانه دَ جهان
مقام لری اوچت ددې جهان له هر انسان
کامل په هر صفت مې په هر لار وليدهٔ
په خوب کښې مې چې سيدالابرار ﷺ وليدهٔ
اطراف ددې جهان ورسره ټول رڼا رڼا دی
اطراف دَ پاس آسمان ورسره ټول رڼا رڼا دی
محبوب چې مې دَ خپل پروردېګار وليدهٔ
په خوب کښې مې چې سيدالابرار ﷺ وليدهٔ
صفات ئې دی بيشميره احمد وائی دَ مردان
اغيار ئې هم مقام او مرتبې ته دی حيران
عالی په هر مقام ما په ګفتار وليده
په خوب کښې مې چې سيدالابرار ﷺ وليدهٔ

★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښائسته ښکلی یادونه مدینه کښې دی پراته
انوار دَ محمد ﷺ ښکلی روضه کښې دی پراته

خوشبو ده هر طرف ته مدینې کښې دَ سنت
رحمت او برکتونه هر کوځه کښې دی پراته

ښُکلا دَ محمد ﷺ په هر چمن کښې ملاویږی
آثار دَ ددې خبرې ګلدسته کښې دی پراته

انوار دَ شریعت کۀ درته ښکاری په جهان
انوار دا دَ نبی ﷺ په هر ذرَه کښې دی پراته

طالب کۀ په جهان ئې دَ لعلونو راشه راشه
لعلونه دَ نبی ﷺ هره جمله کښې دی پراته

احمد علی ! دَ سیوری کۀ طالب ئې په محشر
دا سیوری دَ رسول ﷺ په محله کښې دی پراته

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مزار دَ محمد ﷺ چې چا یو وار ولیدۀ
ښائسته ئې په دُنیا کښې یو ګلزار ولیدۀ

لیدلے چا چې در دَ محمد ﷺ دے په جهان
لیدلے چا چې در دَ محمد ﷺ دے عالیشان

ګویا به وی چې ښکلې ئې دربار ولیدۀ
مزار دَ محمد ﷺ چې چا یو وار ولیدۀ

لیدلی چا چې دلته وي انوار دَ محمد ﷺ

لیدلے چا چې دلته وي آثار دَ محمد ﷺ

ګویا به وي چې نُورئې دَ هر لار ولیدهٔ

مزار دَ محمد ﷺ چې چا یو وار ولیدهٔ

ګواه به وي په دې چې دے حسین او بهترین ﷺ

ګواه به وي په دې چې دے تاجدار دَ مُرسلین ﷺ

چا کور چې دَ حضرت خیر الابرار ﷺ ولیدهٔ

مزار دَ محمد ﷺ چې چا یو وار ولیدهٔ

ګواه به وي احمده! دَ نبي ﷺ په هر صفت

خبر به وي دُنیا کښې دَ نبي ﷺ له فضیلت

دَ لوئی مقام چې چا دلته مینار ولیدهٔ

مزار دَ محمد ﷺ چې چا یو وار ولیدهٔ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ملګرو په ما ګرانه ده بنهٔ ګرانه جدائی

ده ګرانه دَ نبي آخر زمانه ﷺ جدائی

فراق دَ محمد ﷺ لکه دَ غر غوندې په ما دے

فراق دَ محمد ﷺ یو بوج په سر غوندې په ما دے

ده ګرانه دَ نبیانو دَ سلطانه ﷺ جدائی

ده ګرانه دَ نبي آخر زمانه ﷺ جدائی

ده ګرانه په ما ګرانه جدائی دَ محمد ﷺ

مولٰی پکښې زما وګړے دُنیا کښې تهٔ مدد
دهٔ ګرانه دَ محبوب دَ پاك سبحانه جدائی
ده ګرانه دَ نبی آخرزمانه ﷺ جدائی
ده ګرانه دَ کونینو دَ سردارنه جدائی
ده ګرانه دَ حضرت خیر الابرار ﷺ نه جدائی
ده ګرانه په دُنیا دَ قدرانه جدائی
ده ګرانه دَ نبی آخرزمانه ﷺ جدائی
ده ګرانه دَ مسکن دَ محمد ﷺ نه جدائی
ده ګرانه دَ وطن دَ محمد ﷺ نه جدائی
ده ګرانه دَ رسول ﷺ دَ کور مکانه جدائی
ده ګرانه دَ نبی آخرزمانه ﷺ جدائی
ده ګرانه اے احمده! جدائی دا په جهان
ده ګرانه جدائی ده په مؤمن او مسلمان
ده ګرانه په دُنیا دَ عالیشانه ﷺ جدائی
ده ګرانه دَ نبی آخرزمانه ﷺ جدائی

## نعتِ مصطفٰی ﷺ

اے مسافره! تهٔ چې سید الابرار ﷺ له ځے
سلام مې یوسه دَ نبیانو چې سردار ﷺ له ځے
سلام مې یوسه چې چمن ته دَ نبی ﷺ کله ځے
سلام مې یوسه چې وطن ته دَ نبی ﷺ کله ځے

سلام مې یوسه چې محبوب دَربَ غفار له ځې
اے مسافره! تهٔ چې سید الابرار ﷺ له ځې
یوسه سلام مې یو تحفه دَ محبت ځان سره
یوسه سلام مې یو تحفه دَ لوئي عظمت ځان سره
یوسه تحفه چې تهٔ دَ دوجهان غمخوار ﷺ ځې
اے مسافره! تهٔ چې سید الابرار ﷺ له ځې
سلام دَ مینې محبت درنه چې هیر نشي
کلام دَ مینې محبت درنه چې هیر نشي
یوسه سلام چې تهٔ دَ زړهٔ سکون قرار له ځې
اے مسافره! تهٔ چې سید الابرار ﷺ له ځې
یوسه سلام دا دَ احمد علي دَ ځان سره تهٔ
په دے سلام سره ښائستهٔ به شے ایمان سره تهٔ
یوسه سلام چې تهٔ دَ هر بشر دلدار له ځې
اے مسافره! تهٔ چې سید الابرار ﷺ له ځې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

اے نبي ﷺ! ډیر ښکلے ئې
هرچا چې لیدلے ئې
ښکلے هر یو ګل نه تهٔ
هرچا تهٔ منلے ئې
ربَ له لامکان تهٔ

پاس له عرشه تلے ئي
نُور رڼا جهان له ره
ربَ ته راليږلے ئي
ټول وجود رحمت ئي ته ئ
داسے ته راغلے ئي
هر صفت دے ستا غلام
ما احمد ليکلے ئي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زمونږ دَ پاك رسول ﷺ حرم ښکلے دے
دغه حرم په هر قدم ښکلے دے
په کښې ژوندون دَ هر يو گل ښکلے دے
په کښې دَ پاك نبي ﷺ محفل ښکلے دے
دا په دُنيا کښې خورم قسم ښکلے دے
دغه حرم په هر قدم ښکلے دے
د دے حرم راشه جواب نشته دے
په کښې دَ حُسن څۀ حساب نشته دے
دا په عرب او په عجم ښکلے دے
دغه حرم په هر قدم ښکلے دے
دغه حرم لري حُرمت په جهان
دغه حرم لري عزت په جهان

دا په دُنيا کښې بنۀ محکم ښکلے دے
دغه حرم په هر قدم ښکلے دے
دا په اصحابو ؓ دَ نبي ﷺ ښکلے دے
دا په احبابو ؓ دَ نبي ﷺ ښکلے دے
ذکر ئې دلته په قلم ښکلے دے
دغه حرم په هر قدم ښکلے دے
دلته ټکړه دَ جنت ايښې ربّ ده
يوه حصه دَ جنت ايښې ربّ ده
په دغه وجه په عالم ښکلے دے
دغه حرم په هر قدم ښکلے دے
دلته آثار دي داصحابؓ دَ نبي ﷺ
دلته آثار دي لاجواب دَ نبي ﷺ
د دغې در هر يو آدم ښکلے دے
دغه حرم په هر قدم ښکلے دے
دلته کښې نُور دَ حق ورېښنا پرته ده
دلته ورېښنا ټوله رښتيا پرته ده
په دغه وجه دغه چم ښکلے دے
دغه حرم په هر قدم ښکلے دے
ما احمد کړے تذکره ئې دلته
ما ذکر کړے يو جمله ئې دلته

دغــــه ذکـــر بـــۀ محـتـرم بـشـکـلـې دے
دغــــه حـــرم پــــه هـــر قـدم بـشـکـلـې دے

## وعظ ونصيحت

وګـړے سـنـت نـه پـه دُنـيـا کـښـې تـا نفرت کـړے دے
کـار دے دُنيا کـښې په هر ځائے چې دَ بدعت کـړے دے
وګـړے دَ مـيـنـې مـحـبـت نـه تـۀ نـا اشـنـا ئې دلـتـه
چـې تــا انـکـــار پـه هـر مـقـام دَ مـحـبت کـړے دے
وګـړے د ديـن سـره سـتـا مـيـنـه مـحبت نشـتـه دے
ځـکـه لـه دې نـه تـا هـر ځائے کښې بغاوت کـړے دے
وګـړے نيـکـۍ سـره سـتـا مـيـنـه پـه جـهـان کـښـې نشتـه
چې تـا هـر کـار کـښې دَ ابـليـس تـل اطاعت کـړے دے
پـه تـا دُنيـا کـښـې هـر بـدۍ د دې جـهـان بـۀ لـګـي
ځـکــه انـکــار تـــا دَ مـولـٰى دَ شـريـعـت کـړے دے
تـه دَ رحـمـت نـه خـبـر نـۀ ئـې پـه لعـنـت پـسې ځـې
کـار پـه دُنيـا ځـکـه هـر ځـائے تـا دَ لعنت کـړے دے
دَ هـدايـت نــه لـرے لـرے پـــه جـهــان تـۀ ګـرځـې
تـا تــه احـمـد پـه دغـه وجـه نـصـيحـت کـړے دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زۀ چـــې مســـکـــن دَ تــــاجــدار ﷺ ووينــــم
دا مــــې ارمـــان دے چــې بـــار بـــار ووينـم

دا مـــي ارمـــان دے چـــي بـــه کـلـــه ځـمـــه
دا مـــي بيـــان دے چـــي بـــه کـلـــه ځـمـــه
دَ مــــديـــــنـــــي چـــي پـــاك دربـــار وويـــنـــم
دا مـــي ارمـــان دے چـــي بـــار بـــار وويـــنـــم
دامــــــي ارمـــــان دے دااُمیـــــد لـــــرمـــــه
ژونـــدون مـــي ګـــران دے دا امیـــد لـــرمـــه
دَ مـــديـــنـــي چـــي ښـــائستـــهٔ لار وويـــنـــم
دا مـــي ارمـــان دے چـــي بـــار بـــار وويـــنـــم
دغـــــه زهٔ طـــمـــع پـــه دے زړهٔ کښـــي لـــرم
میـــنـــه زهٔ جـــمـــع پـــه دے زړهٔ کښـــي لـــرم
دَ مـــــديـــــنـــــي چـــــي زهٔ آثـــــار وويـــــنـــم
دا مـــي ارمـــان دے چـــي بـــار بـــار وويـــنـــم
دغـــــه اُمیـــد لـــري احـــمـــد عـــلـــى نـــن
اُمیـــــد لـــــري دَ مـــــديـــــنـــــي دَ چـــمـــن
دَ مـــديـــنـــي چـــي زهٔ ګـــلـــزار وويـــنـــم
دا مـــي ارمـــان دے چـــي بـــار بـــار وويـــنـــم

## زما عقیده

زهٔ تـــول مُـــرســـلان او انبیـــاء مـــنـــم
زهٔ پـــه دوی کښـــي غـــوره مـصـطـفـىٰ ﷺ مـنـم
زهٔ تـــول صـــحـــابـــهٔ دَ مـــحـــمـــد ﷺ مـنـم

زهٔ صدیق اکبرؓ ئي مقتدا منم
زهٔ دَ امانو هم قائل یمه
زهٔ نعمانؒ له دلته کښې پیشوا منم
زهٔ د دي جهان نیکان ولیان منم
بعضې پکښې بعضو نه اعلیٰ منم
زهٔ دَ مُرسلانو سلسله منم
زهٔ په محمد ﷺ ئي انتها منم
زهٔ هریوه وحی صحیفه منم
هریوه ددین دُنیا رڼا منم
زهٔ منم کتاب هریو نازل دَ ربَ
زهٔ قرآن دَ ټولو نه بالا منم
ما ایمان راوړے په قرآن باندې
زهٔ احمد دَ حق دغه وینا منم

## وعظ ونصیحت

ښائست لري دُنیا کښې هریو ګل جُدا جُدا
خوشبو لري دُنیا کښې هر محفل جُدا جُدا
خوشبو لري دُنیا کښې انبیاء ټول دَ جهان
هریو لري مقام دلته کښې خپل جُدا جُدا
اصحابؓ دَ محمد ﷺ لري خوشبو په هر طرف
مقام دے دَ دوی ټولو دَ یو بل جُدا جُدا

وليان دي تول گلونه دَ جهان ددغي در
خوشبولري دوى تول دلته كښي تل جُدا جُدا
اعمال دَ زماني دى دَ هرچا ښهٔ رنگ په رنگ
انداز دے دَ هرچا دَ نيك عمل جُدا جُدا
دُنيا كښي مرتبي دى دَ اخلاص اودَ عمل
آخر كښي دَ دي تولو دے بدل جُدا جُدا
عمل دَ انسان مَل دے دَ محشر په لوئي ميدان
هرچا سره دے دلته كښي دا مَل جُدا جُدا
بدعت دے نقل نقل هر سنت دے اصل اصل
قيمت دے دَ نقل او دَ اصل جُدا جُدا
بدله دَ هر سنت ده په محشر كښي دَ عزت
هر چا له مقرر دے يو منزل جُدا جُدا
بدعت سره تړلے رُسوائى ده په هر در
قسمونه سزاگاني شته دَ غَل جُدا جُدا
احمدعلى ! ليكلى تا اشعار دى په قلم
انداز دے ستا دَ نظم او غزل جُدا جُدا

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

خوش نصيبى ده په دُنيا زمونږه
چي رهنما دے مصطفىٰ ﷺ زمونږه
هريو ادا دَ محمد عربى ﷺ

قسم دے دغه ده رڼا زمونږه
هر یو ګفتار دَ محمد عربی ﷺ
نور دے بس نور دا دَ هر خوا زمونږه
اخلاق سیرت دَ محمد عربی ﷺ
قسم دے دغه ده ښکلا زمونږه
پیغام دَ مینې محبت دَ نبی ﷺ
دغه تسکین دے دَ هر چا زمونږه
تعلیم دَ صدق او دَ وفا دَ نبی ﷺ
دغه دَ زړونو ده شفا زمونږه
احمده! هر څۀ دَ نبی ﷺ دَ در
دغه عطا ده دَ مولیٰ زمونږه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

په مدینه کښې رحمتونه ډیر دی
په کښې هر ځائے کښې برکتونه ډیر دی
دا دے مسکن دَ مصطفیٰ ﷺ دَ ال
دلته دَ رحم بارانونه ډیر دی
دلته یاران دَ پاك نبی ﷺ وُسیږی
دلته دَ پاك نبی ﷺ یادونه ډیر دی
دلته حجرې شته دَ ازواج دَ نبی ﷺ
دلته عالی صفت ګلونه ډیر دی

دلتــــه دربــــار دَ پــــاك رســول الــلّــــه ﷺ دے
حُســن ښُــکــلا پــکــښــي رنــګــونــه ډېــر دي
احــمــده ! هــريــو څيــز عـــالــی صــفــت دے
عـــالـــی صــفــت ئــي مــحــلــونــه ډېــر دي

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

تــل بــه تــعــريف دَ مــحــمــد ﷺ پــه جــار جار کوومه
پـــه دي اعــلان ســـره دَ مینــي بـــه اظهـار کوومـــه
دغـــه تـــعـــريف دے عبـــادت دَ دي جهـــان پـــه ژبـــه
دغـــه تـــعـــريف دے عبـــادت دَ مسلمـــان پـــه ژبـــه
دا عبـــادت بـــه زۀ پـــه خـــونـد سره بـــار بـــار کـــوومـــه
تــل بــه تــعــريف دَ مــحــمــد ﷺ پــه جــار جار کوومه
دغــه تــعــريف دَ هــر جــنــت دے پــه دُنيــا کښي سبب
دغــه تعــريف دَ هــر نــعــمــت دے پــه دُنيــا کښي سبب
زۀ دَ صـــفـــاتـــو دَ نبـــی ﷺ بـــه تــل اقــرار کـــوومـــه
تــل بــه تــعــريف دَ مــحــمــد ﷺ پــه جــار جار کوومه
دغـــه تـــعـــريف پـــه انســانـانـو دَ رحـمـت سبـب دے
دغـــه تـــعـــريف پـــه مـؤمـنـانـو دَ رحمـت سبـب دے
دغـــه تـــعـــريف بـــه دَ جهـــان پـــه هريـو لار کـــوومـــه
تــل بــه تــعــريف دَ مــحــمــد ﷺ پــه جــار جار کوومه
دا ده غـــذا دَ هـــر مـــؤمـــن او مســـلـــمـــان دَ پـــاره

دا ده غذا احمده ! هر چا له مردان دَ پاره

تل به تعریف دَ مصطفیٰ خیر الابرار ﷺ کوومه

تل به تعریف دَ محمد ﷺ په جار جار کوومه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

وطن دے ښکلے دا وطن اوچت

ددغي در دے هر سُخن اوچت

دغه چینه دَ انوارا تو دَ دین

دا دے دَ پاك نبی ﷺ مسکن اوچت

مینه پرته ئي ده ذَره ذَره کښي

د دغي در دے هریو تن اوچت

خوشبو پرته ده هر طرف ته په کښي

دا دے مقام د دي چمن اوچت

حیاء وفا لري هریو حصه کښي

کور دے عالی دغه مدفن اوچت

څنګ چي چمن دے دَ رسول عربی ﷺ

داسي به نهٔ وي یو ګلشن اوچت

په کښي بل نشته یو نسبت په جهان

بس دَ رسول ﷺ دے په بدن اوچت

نسبت عالی دَ محمد ﷺ لري تل

احمد ئي هم شو په لمن اوچت

## وعظ ونصیحت

بـچ کیـــږي پــه سـنـت سـره هـریـو بشـر لـــه اُوره
بـچ کیـــږي شـریـعـت سـره هـریـو بشـر لــه اُوره
بچ کیـږي لـه شیطـان نـه پـه دُنیا کښې هر ساعت
بـچ کیـږي نُـور رحـمـت سـره هـریـو بشر لـه اُوره
بـچ کیـږي پــه دُنیـا کښې د دُنیـا لـه هر ظلمتـه
بـچ کیـــږي تـلاوت ســره هــریـو بشـر لــه اُوره
بـچ کیــږي پــه دُنیــا کښــې د دُنیــا دَ ضـلالتـه
بـچ کیـــږي هـدایـت سـره هـریـو بشـر لـــه اُوره
بـچ کیـږي مـعـصـیـت نـه پـه دُنیا کښې هر بشر
بـچ کیـــږي عبـادت ســره هـریـو بشـر لـــه اُوره
بـچ کیـــږي شـرارت نـــه دَ دُنیـــا دَ هـــریـــو در
بـچ کیـــږي صـداقـت ســره یـو بشـر لـــه اُوره
بـچ کیـږي شیطـانت نـه دَ شیـطـان پـه دې جهـان
بـچ کیـږي ښـهٔ صـفـت سـره هـریـو بشر لـه اُوره
بـچ کیـــږي بـد اخـلاقـو نـــه احـمـده ! دَ جهـان
بـچ کیـږي ښـهٔ عـادت سـره هـریو بشـر لـــه اُوره

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

رڼـــا دُنیـــا کښـــې دا دَ چـــا خـــوره ده ؟
رڼـــا دَ سیَـــدالـــورٰی ﷺ خـــوره ده

عــــرب عــجـم پــــه دي رڼـــا رڼـــا دے

دغـــــه تـــورتـم پـــــه دي رڼـــا رڼـــا دے

رڼـــــا دا ښُـــکـــلـــي پــــه دُنیـــا خـــوره ده

رڼــــــا دَ سیَـــــدالــــــورئ ﷺ خــــوره ده

رڼـــا تـــمــــامـــــه دا دُنیـــا پــــه دُوی ده

رڼـــا دا هـــرځـــائے دا هـــرخـوا پـــه دُوی ده

رڼــــا دَ دُوی نــــــه دَ صبـــــا خـــوره ده

رڼــــــا دَ سیَـــــدالــــــورئ ﷺ خــــوره ده

رڼـــا دُنیـــا کښـــي پـــاس قـــمـــر دے پـــه دُوی

رڼـــا دُنیـــا کښـــي بـــره نـــمـــر دے پـــه دُوی

دغـــــه رڼـــا راشـــــه بیـــا بیـــا خـــوره ده

رڼــــــا دَ سیَـــــدالــــــورئ ﷺ خــــوره ده

رڼـــا پـــــه دُوی ســـره دی ستـــوری ښـــکـــلـــی

مـــونـــږ تــــه تیـــروکښـــي بـــره ګـــوری ښـکـلـی

رڼـــــا الحـــمـــــده ! ښـــــهٔ صـــفـــــا خـــوره ده

رڼــــــا دَ سیَـــــدالــــــورئ ﷺ خــــوره ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

کـــاش چـــي مـــدیـنـــه زمـــا مســـکـــن وے

کـــاش چـــي مـــدیـنـــه کښـــي مـــي مـــدفـــن وے

در دَ مــــدیــــنـــي زمـــــا نـــصیــــب وے

کاش چې مې نصیب دغه چمن وے
دغه درسره زهٔ نورانی وے
نورسره رڼا مې ټول بدن وے
دغه خوشبوئی زما نصیب وے
ښکلې دغه دربانديٍ مې تن وے
دغه ځائے نصیب مې هرسکون وے
دغه ځائے نصیب مې زنکدن وے
کاش چې دَ احمد ارمان تمام وے
دغه پوره شوے دلته نن وے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

په خیال کښې هره ورځ دَ مدینې په طرف ځم
دَ پاك رسول الله ﷺ دَ در کوڅې په طرف ځم
وُدیرېمه روضې ته زهٔ په خیال کښې دَ نبی ﷺ
وُدریږمه روضې ته دَ تاجدار دَ مدنی ﷺ
په خیال او تصوَر کښې دَ روضې په طرف ځم
په خیال کښې هره ورځ دَ مدینې په طرف ځم
وُدریږمه روضې ته په ادب او احترام
وُدریږمه روضې ته دَ نبی خیر الانام ﷺ
دَ پاك رسول الله ﷺ دَ باغیچې په طرف ځم
په خیال کښې هره ورځ دَ مدینې په طرف ځم

پــه خيـــال او تـــصـوَر کښـــي ورتـــه وايــمـــه سلام
پـــه خيـــال اوتـــصـــوَر کښـي زۀ کـوُمـــه دا کـلام
ديـدن لـــه دَ مـحبـوب زۀ دَ مـکـيِ پـه طـرف ځـم
پـه خيـال کښـيِ هـره ورځ دَ مـديـنـيِ پـه طرف ځـم
پـــه خيـــال او تـــصـوَر کښـــي درود وايــمـــه تـمـام
دا وايــمـــــه ســحـــر زۀ او دا وايــمـــــه مـــابـښـام
ديـدن لـه دَ نبـی ﷺ زۀ دَ جـنـګـلـيِ پـه طرف ځـم
پـه خيـال کښـيِ هـره ورځ دَ مـديـنـيِ پـه طرف ځـم
پـــه خيـــال او تـــصـوَر کښـي پـــه ادب او احتـرام
احـمـد عـلـی ليـکـلـے مـخـتـصـر دغـــه کلام
ديـــدن لـــه دَ روضـــي دَ دروازيِ پـــه طـــرف ځــم
پـه خيـال کښـيِ هـره ورځ دَ مـديـنـيِ پـه طرف ځـم

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

پـــه خيـــال او تــصـوَر کښـي دَ حــرم پــه طـرف ځـم
ديـدن لـه زۀ دَ پـاك نبـی اکـرم ﷺ پـه طرف ځـم
ديـــدن لـــــه دَ نبيـــانـــو دَ ســـردار زۀ روانيــــږم
ديـدن لـــه پـــه دُنيـا کښـي دَ غـمـخـوار زۀ روانيـږم
دَ پـــاك نبـــی ﷺ دَ لاريِ دَ قـــدم پـــه طـــرف ځـــم
پـــه خيـــال او تــصـوَر کښـي دَ حــرم پــه طـرف ځـم
ديـدن لـــه روانيــــږمـــه صـديـقؓ لــه دَ نبـی ﷺ

دیدن لـه روانیـږمـه رفیق لـه دَ نبی ﷺ
د غار دَ یار دُنیا کښې دغه دَم په طرف ځم
په خیال او تصوَر کښې دَ حرم په طرف ځم
دیدن لـه دَ عمرؓ ابن خطاب زهٔ روانیږم
دیدن لـه مدینـه تـه د دې باب زهٔ روانیږم
دُنیا کښې دَ دُنیا دَ مکرَم په طرف ځم
په خیال او تصوَر کښې دَ حرم په طرف ځم
دیدن لـه زهٔ عثمان ابن عفانؓ لـه روانیږم
دیدن لـه زهٔ افسر دَ دوجهان لـه روانیږم
عزت لـه په دُنیا کښې دَ کرم په طرف ځم
په خیال او تصوَر کښې دَ حرم په طرف ځم
دربار لـه دَ علی ابن طالبؓ زهٔ روانیږم
احمد علی ددغې در کاتب زهٔ روانیږم
رښا لـه دَ نبی ﷺ ابن آدمؑ په طرف ځم
په خیال او تصوَر کښې دَ حرم په طرف ځم

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ماته په دُنیا کښې دَ بدعت خبرې مهٔ کوه
ماسره دَ شر دَ شیطانت خبرې مهٔ کوه
ماسره خبرې دَ سنت دَ محمد ﷺ کوه
ماسره هیڅ کله دَ نفرت خبرې مهٔ کوه

ماسره خبرے دَ اسلام دَ تعليماتو کړه
ماسره يو ځائے دَ ضلالت خبرې مۀ کوه
ماسره دَ مينې محبت کوه خبرے تل
ماسره دَ شر دَ عداوت خبرې مۀ کوه
ماسره خبرې دَ اخلاقو دَ نبي ﷺ کوه
ماسره دَ نفس دَ شرارت خبرې مۀ کوه
ماسره دَ نور او دَ رڼا کوه خبرے تۀ
ماسره دُنيا کښې دَ ظلمت خبرې مۀ کوه
ماسره احمد وائي خبرے دَ وفا کوه
ماسره دَ بل يو شريعت خبرې مۀ کوه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

هيڅ کله دُنيا کښې دَ بدعت کارونه مۀ کوه
هيڅ کله يو ځائے دَ شرارت کارونه مۀ کوه
کار کوه هغه چې دَ نبي ﷺ وي طريقه په کښې
يو ځائے په دُنيا دَ شرارت کارونه مۀ کوه
کار کوه هغه چې وي رضا په کښې دَ پاك نبي ﷺ
يو ځائے په دُنيا دَ بغاوت کارونه مۀ کوه
ربَ چې شي رضا هغه کارونه په دُنيا کوه
هيڅ کله يو ځائے دَ شيطانت کارونه مۀ کوه
کار کوه هغه چې وي په تله دَ قرآن پوره

هیڅ کله یو ځائے کښې دَ لعنت کارونه مهٔ کوه
کار کوه هغه چې دَ حدیثو په رنړا کښې وي
کار دَ بیداری کړه دَ غفلت کارونه مهٔ کوه
کار کوه دُنیا کښې دَ اصحابو ؓ طریقې سره
کار کړه دَ عزت دَ ذلالت کارونه مهٔ کوه
کار کوه صحیح دغه وینا ده دَ احمدعلي
یو ځائے په دُنیا دَ ضلالت کارونه مهٔ کوه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

عظمت باندې نبي ﷺ ستا اٰیاتونه دي ګواه
دُنیا کښې دَ قراٰن ټول تفسیرونه دي ګواه
هر یو نبي ددې خبرې کړے دے اقرار
ټول ستا دَ فضیلت غټ کتابونه دي ګواه
د دین دَ پاره ستا دَ قربانۍ او دَ عظمت
مکه کښې په طائف کښې ونې غرونه دي ګواه
په قُرب دې دَ اللّٰه سره شاهد دے پاس قلم
په شپه کښې دَ معراج ټول اٰسمانونه دي ګواه
په صبر ستا په شکر ده ذرَه ذرَه ګواه
هجرت کښې ټول په لاره منزلونه دي ګواه
شاهد دے ستا په حُسن دَ قمر سره هم نمر
په دې باندې دُنیا کښې ټول ګلونه دي ګواه

خبــرې دي لــعــلـونـــه دي دُنیــا کښـــې دَ دې در
دُنیــا کښـــې پـــه دُنیــا دغـــه لـعلـونـه دي ګـواه
هــرقــول کښـــې يـم صـادقـــه دَ دُنیــا پــه دغــې در
احــمــدعــلــی پـــه دغـې حـدیثـونـــه دي ګـواه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښـکـلـے ده مـکـه ښـکـلـې، دلتــه ده کعبـه ښکلې
ده ښــهٔ مـدینـه ښـکلې ، دلتـــه ده روضــه ښـکـلې
یـــو ځــــائـــے مــلـتـــزم دَربّ ، ورســـره زم زم دَربّ
بل ځائے کښې نبی ﷺ دَربّ، ښکلے هاشمی ﷺ دَربّ
دلتـــه هــر ذرّه ښـکـلې ، هلتــه هـر حـصـه ښـکلې
ښـکـلـے ده مـکـه ښـکـلـې، دلتــه ده کعبـه ښکلې
ده ښــهٔ مـدینـه ښـکـلـے ، دلتـه ده روضــه ښـکلې
یـو خـوا ده ښـائسـتــهٔ فـضـا، ښـکـلـے ده مــروه صفا
بـــل خـــوا ده رڼــــا رڼــــا ، هــــر صـفـــت لــری جُـدا
یـو خـوا تـه چینـه ښـکلې ، بـل خوا ګلدسته ښکلې
ښـکـلـے ده مـکـه ښـکـلـې، دلتــه ده کعبـه ښکلې
ده ښــهٔ مـدینـه ښـکلې ، دلتـــه ده روضــه ښـکـلې
یـو خـوا دَ خلیـل مـقـام ، مـونـځ پـه کښـې کوی عوام
بـل ځـائـے کښـې بـابُ الـسـلام، هلتـه دے ماهِ تمام
یـو خـوا ده تـوبـه ښـکـلې، بل خوا هر حصـه ښکلې

ښکلے ده مکه ښکلي، دلته ده کعبه ښکلي
ده ښۀ مدینه ښکلي، دلته ده روضه ښکلي
یو خواته حجرِ اسود، نُور دے دَ هریو لحد
وائي وائي دا احمد، دا رښا دَ نیك او بد
یو خوا دا نشه ښکلي، بل خوا دا جلوه ښکلي
ښکلے ده مکه ښکلي، دلته ده کعبه ښکلي
ده ښۀ مدینه ښکلي، دلته ده روضه ښکلي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دا مخا مخ مې تصوَر کښې دَ جانان کلے دے
دغه زمونږ دَ پاك نبي اٰخرزمان ﷺ کلے دے
دا مخا مخ راته وطن ښائسته رڼا چې ښکارېږي
دا مخامخ راته چمن ښائسته رڼا چې ښکارېږي
دغه زمونږ دَ مُرسلانو دَ سلطان کلے دے
دغه زمونږ دَ پاك نبي اٰخرزمان ﷺ کلے دے
دا مخامخ راته چې ښکارېږي خوشبوداره در
دا مخامخ راته چې ښکارېږي لکه پاس قمر
دغه حسین دَ کائنات ښۀ عالیشان کلے دے
دغه زمونږ دَ پاك نبي اٰخرزمان ﷺ کلے دے
دا مخا مخ راته چې ښکاري بې مثاله ښکلے
نشته دے دغه رنګ دُنیا کښې بل حسین یو کلے

دغــه هــر زړهٔ لــه پــه دُنيــا دَ اطميـنـان كلـے دے
دغــه زمــونــږ دَ پـاك نبــی آخـرزمان ﷺ كلـے دے
دا مـخا مـغ چي دے احـمده ! ستا نظر كښې اوُسی
دا مـخا مـغ درتـه چي ښكاری ستا ځيگر كښي اوُسی
دا پـــه دُنيــا كښـي دَ دُنيــا دَ مهــربـان كلـے دے
دغــه زمــونــږ دَ پـاك نبــی آخـرزمان ﷺ كلـے دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښــكــلــے دے تـول ښـار دَ مـديـنـي ښـكـلـے
ښــكــلــے دے دربـــار دَ مـــديـــنـــي ښـكـلـے
ښــكــلــی ده روضـــه پـــه كښــي دَ پــاك نبــی ﷺ
ښــكــلــے دے ســـردار دَ مـــديـــنـــي ښـكـلـے
ښــكــلـے پــه ښــارونــو كښـي دا ښــكــلــے دے
ښــكــلــے دے مـــزار دَ مـــديـــنـــي ښـكـلـے
ده پـــه كښـــي حـــجـــره دَ عــــائشـــي بـــی بـــیؓ
در دے خـــوشبـــودار دَ مـــديــــنـــي ښـكـلـے
ښــكــلــے دے صـديـقؓ عـمـرؓ عثـمـانؓ عـلـیؓ
ښــكــلــے دے هـــريــار دَ مـديـنـي ښـكـلـے
ښــكـــلــــی دے هـــر گـــل دَ مـــديــنـــي دَ در
ښــكــلــے دے گـــلـــزار دَ مـديـنـي ښـكـلـے
ښــكــلـــے دی ســـامــــان دَ مـــديـــنـــي دَ در

ښکلې دې بازار دَ مدینې ښکلې
ښکلې دې چمن وائی احمد علی
ښکلې دې ګفتار دَ مدینې ښکلې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مونږ یُو امتیان دَ محمد خیر الابرار ﷺ امین
یُو مونږه په ربَ میئن ، ښکلې دې زمونږه دین
مونږه امتیان دَ محمد خیر الابرار ﷺ یُو تول
مونږ په نیغه لاره دَ نبیانو دَ سردار یُو تول
یاد دې په صفت سره هرخواته چې په بهترین
یُو مونږه په ربَ میئن ، ښکلې دې زمونږه دین
مونږه امتیان یُو دَ خاتم لانبیاء نبی ﷺ
مونږه امتیان یُو دَ امام الاولیاء نبی ﷺ
دا مې عقیده ده هم دغه لرمه زهٔ یقین
یُو مونږه په ربَ میئن ، ښکلې دې زمونږه دین
مونږه امتیان یُو دَ غمخوار د دې جهان نبی ﷺ
مونږه امتیان یُو دَ تاجدار د دې جهان نبی ﷺ
یاد دې په دُنیا کښې د دُنیا دَ در هغه حسین
یُو مونږه په ربَ میئن ، ښکلې دې زمونږه دین
مونږه امتیان یُو احمد وائی دَ خیر البشر ﷺ
دلته دَ دُنیا دَ پاره دې هغه رښا سحر

یـادپـه مـزمـل مـدثـر دے هغـه طٰـهٰ یٰسیـن ﷺ

یُـو مـونـړه پـه ربّ میٔـن ، ښـکلـے دے زمونړه دین

## نعتِ مصطفٰی ﷺ

تـــادرِ دَ مـحـمـد خیـرالبشـر ﷺ چـي ولیـده

ښــائستـه دے لـکـه بـره پـاس قـمـر چـي ولیـده

دیـدن چـي دَدربــارِ دَ مـحـمـد ﷺ اُکـړلـو تـــا

دیـدن چـي دَ ګـلـزارِ دَ مـحـمـد ﷺ اُکـړلـو تـا

تـــادرِ دَ مُـــرسـلانـو دَافسـر چـي ولیـده

ښــائستـه دے لـکـه بـره پـاس قـمـر چـي ولیـده

دیـدن درتـه نـصیـب شـو دَوطن چـي دَ نبـی ﷺ

دیـدن درتـه نـصیـب شـو دَ مـدفـن چـي دنبـی ﷺ

قسـم دے پـه دُنیــا کښـي تـا بهتـر چـي ولیـده

ښــائستـه دے لـکـه بـره پـاس قـمـر چـي ولیـده

دیـدن چـي شـو نصیـب ستـا دَ یـارانو دَ نبـی ﷺ

دیـدن دے بیـا نـصیـب شـو دَ عثـمانؓ او دَ علیؓ

بیــا دوی سـره صـدیـقؓ او تـا عـمـرؓ چـي ولیـده

ښــائستـه دے لـکـه بـره پـاس قـمـر چـي ولیـده

دیـدن درتـه نـصیـب شـو دي درِ دَ نُـور رڼـا

احـمـدعـلـی پـه دې سـره کـړه ختـمـه داوینا

تـا دلتـه دا مـقـام پـه دې نـظـر چـي ولیـده

شائسته دے لکه بره پاس قمر چې ولیده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

قلم په لاس دَ پاك رسول اللّٰه ﷺ صفت لیکمه
دغه دُنیا کښې زړهٔ سکون له هرساعت لیکمه
ماته معلومه ده چې حق به پرې ادا ئې نشی
پوره دَ حُسن دَ ښُکلا به دا وینا ئې نشی
دغه دُنیا کښې یو سبب دَ مغفرت لیکمه
قلم په لاس دَ پاك رسول اللّٰه ﷺ صفت لیکمه
ماته معلومه ده چې لوئې مقام دَ پاك نبی ﷺ دے
راته معلومه ده چې احترام دَ پاك نبی ﷺ دے
دغه بیان په دې جهان دَ عبادت لیکمه
قلم په لاس دَ پاك رسول اللّٰه ﷺ صفت لیکمه
راته معلومه ده اوصاف لرې بیشمیره نبی ﷺ
تاته معلومه ده اوصاف لرې بیشمیره نبی ﷺ
دغه اوصاف دَ پاك نبی ﷺ دَ فضیلت لیکمه
قلم په لاس دَ پاك رسول اللّٰه ﷺ صفت لیکمه
راته معلومه ده احمد دَ مردان وائې دغه
مخلوق ته دلته په دُنیا کښې داسے ښائی دغه
په قلم ذکر دَ نبی ﷺ د در رحمت لیکمه
قلم په لاس دَ پاك رسول اللّٰه ﷺ صفت لیکمه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

صادق امین نبی ﷺ دے ، دَ ربّ نیازبین نبی ﷺ دے
شاه دَ شاهانو تولو ، شاه دَ نیکانو تولو
دا اوّلین نبی ﷺ دے ، دا آخرین نبی ﷺ دے
صادق امین نبی ﷺ دے ، دَ ربّ نیازبین نبی ﷺ دے
فضا په دوی ښکلې ده ، دُنیا په دوی ښکلې ده
داسے حسین نبی ﷺ دے ، ربّ ته قرین نبی ﷺ دے
صادق امین نبی ﷺ دے ، دَ ربّ نیازبین نبی ﷺ دے
جهان په دُوی آباد دے ، آسمان په دُوی آباد دے
ډیر بهترین نبی ﷺ دے ، حق دے یٰسین نبی ﷺ دے
صادق امین نبی ﷺ دے ، دَ ربّ نیازبین نبی ﷺ دے
سپرلے په دُوی ښکلے دے ، ښائسته ئې در کلے دے
دَ ربّ متین نبی ﷺ دے ، ایمان یقین نبی ﷺ دے
صادق امین نبی ﷺ دے ، دَ ربّ نیازبین نبی ﷺ دے
دوست دَ نیکانو خلقو ، دَ یتیمانو خلقو
دَ متقین نبی ﷺ دے ، دَ صالحین نبی ﷺ دے
صادق امین نبی ﷺ دے ، دَ ربّ نیازبین نبی ﷺ دے
ښکلے ئې هر یو صفت ، احمد لیکلے ئې نعت
رهبر د دین نبی ﷺ دے ، دَ ښۀ آئین نبی ﷺ دے
صادق امین نبی ﷺ دے ، دَ ربّ نیازبین نبی ﷺ دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

رهـــنـــمـــا دَ هـــر انســـان، دا نبـی اَخــرزمـان ﷺ
پـــه دُنیـا کښـې پـه هـر در ،رهنما دے دَ بشـر
دَ مـــکــــان او لامـکـــان، دا نبـــی اَخـــرزمـــان ﷺ
رهـــنـــمـــا دَ هـــر ولـــی، مـقـتـدا دَ مـقـتـدی
ښـۀ کـامـل پـه هـر بیـان، دا نبی اَخرزمان ﷺ
هر یـو قـول ئې دے حجت، نور دے نورئې هرسنت
ربَ ورکـــړے دے قـرآن، دا نبـــی اَخـــرزمـــان ﷺ
رهـــنـــمـــا دَ مـحـدَث، نُـــوررنـــا دَ مـحـدَث
حـفـاظـت دَ هـر نـقـصـان، دا نبی اَخرزمان ﷺ
هـر فـقیهـه ئـې دے پـه لار، هـر عـالِم ئې تابعدار
گـل دے گـلِ گـلستـان، دا نبـی اَخـرزمـان ﷺ
زۀ احـمـد ئـې پیـروکـار، زۀ تـابـع یم ئې دَ لار
زړۀ سـکـون مې اطـمینان، دا نبی اَخرزمان ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زمـــونـــږ نبـــی ﷺ ښـــائسـتـــۀ دے
خـــوږ مـــدنـــی ﷺ ښـــائسـتـــۀ دے
چـــې پـــه نســـب دے اعـــلـــیٰ
دا هـــاشـــمـــی ﷺ ښـــائسـتـــۀ دے
یـــا د پـــه بشیـــر نـــذیـــر

دغه داعی ښائسته ده

دَ فاطمې ؓ بابا دے

سخر دَ علی ؓ ښائسته ده

امام دَ هریو امام

دغه عالی ښائسته ده

ښُکلا دَ هریو چمن

دا مدنی ﷺ ښائسته ده

په تول سیرت صورت

دا عربی ﷺ ښائسته ده

وائی احمد له هرچا

زمونږ مکی ﷺ ښائسته ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

داسے اوچت اولوئي مقام دَ چا دے؟

کوم یو مقام چي دَ رسول اللّٰه ﷺ دے

چي په سردار دَ مُرسلانو یاد دے

چي په غمخوار دَ یتیمانو یاد دے

دغه عالی صفت خیر الوریٰ ﷺ دے

کوم یو مقام چي دَ رسول اللّٰه ﷺ دے

داسے اوچت اولوئي مقام دَ چا دے؟

چي ئي اُمت له هر اُمت دے غوره

داسي به نه وي بل اُمت بهتره
دغه نسبت زمونږ دَ رهنما دے
کوم يو مقام چي دَ رسول الله ﷺ دے
داسے اوچت اولوئي مقام دَ چا دے؟

عالي اصحابؓ ئي دَ جهان دی تول
عالي محفل کښي ئي ياران دی تول
دَ هر رنځور په هريو درد دوا دے
کوم يو مقام چي دَ رسول الله ﷺ دے
داسے اوچت اولوئي مقام دَ چا دے؟

عالي ئي در دَ مديني دے ښکلے
عالي مقام ئي دَ روضي دے ښکلے
ياد په لقب سره بدرالدُّجیٰ دے
کوم يو مقام چي دَ رسول الله ﷺ دے
داسے اوچت اولوئي مقام دَ چا دے؟

عالي نسبت ئي دَ جهان دے هرځائے
احمد ددغي په ارمان دے هرځائے
له دغي وجي دلته کښي ګويا دے
کوم يو مقام چي دَ رسول الله ﷺ دے
داسے اوچت اولوئي مقام دَ چا دے؟

★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دغــــه رڼــا د دې جهــــان دَ چـــا ده؟
دغــــه زمـــونـــږه دَ خیـــر الــوریٰ ﷺ ده

هـریــو صـفـت سره ښـائستـهٔ ښـکـلـے دے
ښـکـلـے ئـې دلتــه کښـې هـریـو ادا ده

ښــکـلـی اخـلاق ورلــه ورکـړی رب دی
دغــه دَهـریــو تــن ښـائسـت ښُـکـلا ده

ذکـــر ئـــې درددې جهـــان ختــمـــوی
ذکــر کښــې دلتــه ئــې پــرتــه شـفـا ده

خـــوږې لــه هــرڅـهٔ نــه ئــې دی خبــري
تـــل لـــه ګیـنـــه ئـــې خـــوږه وینـــا ده

دَ ربَ ســـره ئــې پـــاس خبـــرې شـــوی
پــــه دې خبـــره دا ګـــواه دُنیـــا ده

رحــمــت ئـې خــور دے پــه آسـمـان او زمـکــه
آبـــاده دُوی ســـره دَ زړهٔ صـــحـــرا ده

صـــفــــات ئــــې ډیـــر دی دَ جهـــان دَ در
رتُبـــه احـــمـــده ! ئـــې اعــلـــیٰ بـــالا ده

دُعا

خــدایــا عــمــل مــې پــه قــرآن نـصیـب کـړې
نُــور دَ حــدیـث مــې پــه جهــان نـصیـب کـړې

ستانه زۀ خدایه! هدایت غواړمه
نُور دَ اسلام دَ شریعت غواړمه
ستانه مقام دَ فضیلت غواړمه
ستانه مدد زۀ هر ساعت غواړمه
دَ زړۀ مې دلته اطمینان نصیب کړې
خدایا عمل مې په قرآن نصیب کړې
ماله عزت دَ دوجهان راکړئ
ماله عظمت د دوجهان راکړئ
ماله قُربت د دوجهان راکړئ
ماله رحمت دَ دوجهان راکړئ
زما په ژبه حق بیان نصیب کړئ
خدایا عمل مې په قرآن نصیب کړئ
غواړم لتانه تلاوت دَ جهان
غواړم لتانه شرافت دَ جهان
غواړم لتانه سعادت دَ جهان
غواړم لتانه هدایت دَ جهان
ربَه زما کامل ایمان نصیب کړئ
خدایا عمل مې په قرآن نصیب کړئ
غواړم لتانه زۀ چمن دَ اصحابؓ
غواړم لتانه زۀ وطن دَ اصحابؓ

غــواړم لتــــانــــه خــوږ ســخــن دَ اصــحـــابؓ
غــواړم لتـــانـــه پـــاك مســـكـــن دَ اصــحـــابؓ
ربَـــــه ! زمـــــا دغــــه يـــاران نــصـيـــب كــړې
خــدايـــا عـــمـــل مـــي پـــه قــرآن نــصيــب كــړې
ربَـــــه ! لتــــانـــه هـــر جــنـــت غـــواړمـــه
ربَـــــه ! لتــــانـــه مــغــفـــرت غـــواړمـــه
دَ پـــاك رســـول الـــلّـــه قُـــربـــت غـــواړمـــه
لتــــانــــه ستــــا زهٔ مـــعـــرفـــت غـــواړمـــه
دغــــه بيـــان مـــي عـــاليشـــان نــصيـــب كـــړې
خــدايـــا عـــمـــل مـــي پـــه قــرآن نــصيــب كــړې
غـــــواړم لتـــــانــــــه مــــحبـــت دَ قـــــرآن
غــــواړم لتـــانــــه لـــــه هـــرشـــر نــــه أمـــان
غــــواړم لتـــانــــه زهٔ پــنـــاه لـــــه شيــطـــان
غـــــواړم لتـــــانــــــه زهٔ احـــمـــد دَ مـــردان
ربَـــه ! ښــائستــهٔ مـــي هـــر مكـــان نصيــب كــړې
خــدايـــا عـــمـــل مـــي پـــه قــرآن نــصيــب كــړې

دُعا

مـــــالــــه بــدعـــت نــــه امـــان راكـــړې ربَـــه !
دَ شيـــطـــانـــت نـــــه امـــان راكـــړې ربَـــه !
دغـــــــه دُعـــــا دا الـتــجـــــا ده زمـــــا

دغـــــه دَ زړهٔ نــــــه يـــو دُعـــــا ده زمـــــا
دلتـــــه هـــرڅــائـــے کښـي پـــه هــرخــوا ده زمــا
پـــــه عـــــاجـــزی ســـره بيـــا بيـــا ده زمـــــا
دَ هـــر ظــلــمـــت نـــــه امـــان راکـــړئ ربّـــــه!
دَ شيـــطـــــانــــت نـــــه امـــان راکـــړئ ربّـــــه!
دغـــــه يـــو ســـوال دے خـــدايـــا ستـــانـــه زمـــا
غـــواړمـــــه تـــانـــــه مهـــربـــانـــــه زمـــا
لــــرے هــــر غـــم کـــړه دَ دُنيـــا نــــه زمـــا
کـــارونــــه پـــتِ نـــهٔ دی دا ستـــانـــه زمـــا
دَ هـــر لـــعـــنـــت نـــــه امـــان راکـــړئ ربّـــــه!
دَ شيـــطـــــانــــت نـــــه امـــان راکـــړئ ربّـــــه!
مـيـــنـــــه پـــــه زړهٔ کښــــي راپيــدا کـــړه زمـــا
نـــفـــرت دَ زړهٔ نـــــه بيـــا جُـدا کـــړه زمـــا
مـــــوړ دغـــــــه زړهٔ ددې دُنيـــا کـــــړه زمـــا
فـــکــــــرورســــره دَ عــــقـبـــیٰ کـــړه زمـــا
کـــار دَ غـــفـــلـــت نــــه امـــان راکـــړئ ربّـــــه!
دَ شيـــطـــــانــــت نـــــه امـــان راکـــړئ ربّـــــه!
ربّـــــه ! دا هـــر څــــــه تـــول اســـان دی پـــــه تـــا
دغـــــه تـــول پـــتِ دلتـــــه عيـــان دی پــــه تـــا
اســـــان کـــــارونـــــه دَ جهـــــان دی پـــــه تـــا

ګـران چـې دی ځـو مـره تـه ول اسـان دی پـه تـا
دَ ضـلالـت نـه امـان راكـړئ ربّـه !
دَ شیـطـانـت نـه امـان راكـړئ ربّـه !
غـواړي احـمـد درنـه مـردان كښـي دغـه
انسـانـان غـواړي تـه ول جهـان كښـي دغـه
مـخـلـوقـات غـواړي پـاس آسمـان كښـي دغـه
مـارغـان تـه ول غـواړي خپـل بیـان كښـي دغـه
دَ مـصـیبـت نـه امـان راكـړئ ربّـه !
دَ شیـطـانـت نـه امـان راكـړئ ربّـه !

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

نـمـونـه ئـي تـه ول زمـونـږ دَ پـاره ژونـد دے
څـوك دے ؟ څـوك دے ؟ محمد دے عزت مند دے
پـه صـورت او پـه سیـرت كښـي ئـي تـه ول خیـر دے
دَ هـر چـانـه پـه هـر ځـائـے كښـي سـربلـنـد دے
دَ نبیـانـو دَ تـه ولـی هـغـه امـام دے
پـه هـر ځـائـے كښـي پـه هـر درښـۀ قـدرمـنـد دے
قـول او فـعـل ئـي حـجـت دے مـونـږ دَ پـاره
پـه هـرقـول كښـي ئـي دَ دوجهـان پـټ پـنـد دے
ذكـر هـر ځـائـے چـا چـې كـړے ئـي دے دلتـه
دغـه ذكـر ئـي پـه شـان لـكـه دَ قـنـد دے

اے احمد علي! د دو جهان قمر دے
لوئي مقام ئي لکه نمر غوندي څرګند دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

محبوب دَربَ دَزړۀ سکون زما دے
دَزړۀ سکون دغه ژوندون زما دے
دغه قرآن چې ربَ ورکړے ورله
دغه آئين ښائسته قانون زما دے
چې ئي سيرت کښي هر مضمون راغلے
دغه سيرت دغه مضمون زما دے
شکر په دغي چې سيرت ئي لُولم
دغه اسلام سره ترون زما دے
زۀ ئي روان چې په سنت باندي شم
وائي احمد دغه بدلون زما دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

هر صحابيؓ ئي دَ آسمان ستورے دے
رڼا روښانه دَ جهان ستورے دے
په هر ادا چې دَ نبي ﷺ قربان دے
دا په رښتيا ډير عاليشان ستورے دے
دَ غار ملګري ئي صديق اکبرؓ دے
زمونږ دَ دين دغه انسان ستورے دے

هريو ملګري دَ نبي ﷺ ښائسته دي
که دي عمر ؓ که دي عثمان ؓ ستوري دي
احمده ! ذکر دَ رسول الله ﷺ کړه
تر ينه دُنيا کښي هر قريان ستوري دي

دَ بدعت مذمت

په دُنيا دَ هر شيطان نه ځان ساته
دَ بدعت دَ هر نقصان نه ځان ساته
دَ رحمت سره نۀ لګي دَ لعنت
دَ لعنت دد ي جهان نه ځان ساته
دَ سپرلي او دَ خزان فطرت جُدا دي
شۀ سپرلي د هر خزان نه ځان ساته
نۀ دَ ګل دَ زاغي خپلو کښي لګي
دَ زاغو دَ هر دکان نه ځان ساته
خير دَ شر سره يو ځائي نه پاتي کيږي
تل دَ شر ساز وسامان نه ځان ساته
اي احمد علي بيان دَ خير او شر شته
د شيطان دَ هر بيان نه ځان ساته

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دوست زمونږه دَ مولیٰ ئي
محمد رسول الله ﷺ ئي

ټول مخلوق دے قدردان دے

كۀ انسان دے كۀ حيوان دے

تۀ يٰسين ئي تۀ طٰه ﷺ ئي

محمد رسول الله ﷺ ئي

مونږه ستا ټول پيروكاريُو

مونږه ستا په نيغه لاريُو

تۀ زمونږه مقتدائي

محمد رسول الله ﷺ ئي

ستا په ذكر كښي سكون دے

ستا سيرت ښائسته قانون دے

دَ هرلاري نُور رڼائي

محمد رسول الله ﷺ ئي

تۀ خاتم ئي دَ نبيانو

تۀ امام ئي دَ وليانو

دَهريو چمن ښُكلائي

محمد رسول الله ﷺ ئي

هريو در په تا آباد دے

بحروبر په تا آباد دے

په هريو صفت جُدائي

محمد رسول الله ﷺ ئي

ستا صفات دي تهول لعلونه
يا دي بشكلي تهول گلونه
داسې دلته کښې پيدائي
محمد رسول الله ﷺ ئي
مونږه ستا تهول امتيان يُو
ستا دَ در تهول غلامان يُو
دَ احمد دَ زړهٔ صدائي
محمد رسول الله ﷺ ئي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

بې نقطې دې ښائسته نُوم ستا
دغه شان دې ښهٔ معلوم ستا
ستا دَ عدل گواهان دي
دا اغيار خلق محکوم ستا
ستا دَ نُور رڼا چينې دي
په هر ځائے کښې تهول علوم ستا
لوئي مقام ته رسيدلی
چې خبر شول په مفهوم ستا
تهٔ قاسم ئې دَ هر خيز
تهول خيزونه دي مقسوم ستا
هر ظالم دې پوهه کړے

مدحه کړي هر مظلوم ستا
دا احمد په قلم لیکلی
دا تعریف دے تېول منظوم ستا

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښائسته ښکلے جانان دَ مدینې زمونږه دے
رهبر دَ ټول جهان دَ مدینې زمونږه دے
قرآن کښې ئې دے ذکر دَ اُسوهٔ حسنه
دَ ژوند دَ پاره ښکلے ئې سیرت دے أئینه
سلطان هر سلطان دَ مدینې زمونږه دے
ښائسته ښکلے جانان دَ مدینې زمونږه دے
غمخوار دَ یتیمانو غریبانو ټولو خلقو
غمخوار په هر مقام دَ مظلومانو ټول خلقو
بې مثله مهربان دَ مدینې زمونږه دے
ښائسته ښکلے جانان دَ مدینې زمونږه دے
قرآن ورله ورکړے ربَ دَ ټول جهان دَ پاره
قرآن ورله ورکړے ربَ دَ هر انسان دَ پاره
دا صاحبِ قرآن دَ مدینې زمونږه دے
ښائسته ښکلے جانان دَ مدینې زمونږه دے
یاران ئې دَ جهان دَ پاره ستوری دَ هر در دی
یاران ئې په دُنیا کښې خوشبوداره معطر دی

رهبر عظيم انسان دَ مديني زمونږه دے
ښائسته ښکلے جانان دَ مديني زمونږه دے
علاج دَ رنځورانو دَ دُنيا دَ هر يو در
شافع دے دَ محشر هغه ساقي دے دَ کوثر
سکون او اطمينان دَ مديني زمونږه دے
ښائسته ښکلے جانان دَ مديني زمونږه دے
خاتم دَ مُرسلانو دے محبوب دَ اکبر
احمد على خبره تاکړه نوره مختصر
نبي اٰخرزمان ﷺ دَ مديني زمونږه دے
ښائسته ښکلے جانان دَ مديني زمونږه دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

راځئ چي دَ نبيانو دَ افسر ﷺ وکړو خبري
راځئ چي دَ محبوب خير البشر ﷺ وکړو خبري
راځئ چي تذکره وکړو دَ شافعِ محشر ﷺ
راځئ چي تذکره وکړو دَ ساقي کوثر ﷺ
راځئ دَ محبوب دَ ربّ اکبر ﷺ وکړو خبري
راځئ چي دَ محبوب خير البشر ﷺ وکړو خبري
راځئ چي تذکره وکړو دَ احسن الوریٰ ﷺ
راځئ چي تذکره وکړو دَ نُور بدالدجیٰ ﷺ
راځئ چي دَ مخلوق د دي دلبر وکړو خبري

راځئ چې دَ محبوب خیر البشر ﷺ وکړو خبرې

راځئ چې ذکر وکړو دَ خاتم الانبیاء ﷺ

راځئ چې ذکر وکړو دَ امام الاولیاء ﷺ

راځئ چې دَ اسلام بنائسته قمر وکړو خبرې

راځئ چې دَ محبوب خیر البشر ﷺ وکړو خبرې

راځئ چې ذکر وکړو احمد وائی دَ نبی ﷺ

راځئ چې ذکر وکړو دَ مکی او مدنی ﷺ

راځئ چې ددې نور بنائسته سحر وکړو خبرې

راځئ چې دَ محبوب خیر البشر ﷺ وکړو خبرې

وعظ ونصیحت

ملګرتیا دَیو شیطان نهٔ ده پکار

یو سودا هم دَ نقصان نه ده پکار

په بدعت کښې تش نقصان دَ هرانسان دے

دا سودا د دې جهان نه ده پکار

چې رسول ﷺ درنه ناراضه په یو کار شی

دا سودا د دې خفګان نه ده پکار

چې سبب دَ هر لعنت په دے جهان شی

دا سودا په یو مکان نه ده پکار

چې خفه ترینه مولیٰ د دې جهان شی

دا سودا دَ مسلمان نه ده پکار

چې محروم کړي تا احمده ! له ایمانه
دا سودا په یو زیان نه ده پکار

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

بهترین زمونږ نبی ﷺ دے
چې مکی ﷺ او مدنی ﷺ دے
په رُتبه کښې اوّلین دے
په ظُهور کښې اٰخرین دے
قریشی ﷺ دے عربی ﷺ دے
بهترین زمونږ نبی ﷺ دے
دَ مولیٰ هغه محبوب دے
بهترین ئې هر اُسلوب دے
معلم ﷺ دے هم غازی ﷺ دے
بهترین زمونږ نبی ﷺ دے
هر ادا ئې نُور رڼا ده
تذکره کښې ئې شفا ده
هر قدم ئې قیمتی دے
بهترین زمونږ نبی ﷺ دے
بهترین ئې طریقه ده
ښه ښائسته ئې مدینه ده
په سخیانو کښې سخی ﷺ دے

بهترین زمونږ نبی ﷺ دے

ښۀ حسین په ټول صورت دے

بهترین ئي ټول سیرت دے

کامل نُور دَ ابدی دے

بهترین زمونږ نبی ﷺ دے

دَ محشر توښه زمونږه

دَ هر در توښه زمونږه

هر غلام ئي جنتی دے

بهترین زمونږ نبی ﷺ دے

دا صفت ئي دے تمام

دَ نبی ﷺ دے دا مقام

مقتدی ئي هر ولی دے

بهترین زمونږ نبی ﷺ دے

زۀ احمد کوُم اعلان

دا کوُمه زۀ بیان

ذکر سره مرکزی دے

بهترین زمونږ نبی ﷺ دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

را یاد کړه اے حاجی د هغې ښار هغه وختونه

ښائسته ۀ په مدینه کښې دَ گفتار هغه وختونه

وختونه مبارك هغه دربار كښې دَ نبی ﷺ
وختونه مبارك هغه مزاركښې دَ نبی ﷺ
رایاد كړه درنه هیر نهٔ شی بار بار هغه وختونه
ښائسته پهٔ مدینه كښې دَ ګفتار هغه وختونه

په ورو ورو قدمونه هر طرف ته په هر لور
دیدن دَ هر چمن ورسره بیا شامل كړه نُور
رایاد كړه اے صاحبه! دَ اذكار هغه وختونه
ښائسته پهٔ مدینه كښې دَ ګفتار هغه وختونه

په مینه محبت سره دیدن دَ هر بشر
په مینه محبت سره دیدن دَ هر یو در
رایاد كړه اے مؤمنه! دَ بهار هغه وختونه
ښائسته پهٔ مدینه كښې دَ ګفتار هغه وختونه

ښائسته ښكلی ګلونه مدینه كښې دَ جهان
احمد علی ئې ذكر دلته كړے عالیشان
بیا هلته كښې دَ زړهٔ تول بیقرار هغه وختونه
ښائسته پهٔ مدینه كښې دَ ګفتار هغه وختونه

## اصحابؓ دَ محمد ﷺ

قمر دے محمد عربی ﷺ ستوری دی اصحابؓ
ګلونه د دُنیا دی په دُنیا كښې دَ ګلاب
صدیقؓ دے كهٔ عمرؓ دے هغهٔ ستوری دَ جهان دی

ملګري دَ نبي ﷺ په هر محفل کښې عاليشان دي
کارونه دَ جهان ئې په دُنيا دي لاجواب
قمر دے محمد عربي ﷺ ستوري دي اصحابؓ
رڼا ئې هر طرف ته په جهان ده خوره شوې
رڼا ئې دَ دُنيا په هر مکان ده خوره شوې
قسم دے مقتدا دي دَ دُنيا دَ هر يو باب
قمر دے محمد عربي ﷺ ستوري دي اصحابؓ
اقوال ئې دَ جهان کښې لعلونه عاليشان
افعال ئې دَ جهان کښې ګلونه عاليشان
دُنيا کښې دے هر چا له يو سپورے دَ سحاب
قمر دے محمد عربي ﷺ ستوري دي اصحابؓ
ياران دَ محمد ﷺ دي ټول صادقه دَ جهان
احمد علي ئې دلته ذکر کړے دَ لوئې شان
پرانستے په جهان کښې دَ رڼا دے يو کتاب
قمر دے محمد عربي ﷺ ستوري دي اصحابؓ

## ياران دَ محمد ﷺ

ياران دَ محمد ﷺ دي ټول ګلونه دَ ګلاب
ثاني په دُنيا نۀ لري دُنيا کښې په هر باب
صديقؓ دے کۀ عمرؓ دے راشه راشه قدردان دے
قسم دے په دُنيا کښې بهترين عليؓ عثمانؓ دے

هـر ګـل د دې ګـلـونـو نــه يـاديـږي لاجـواب
ثـانـی پــه دُنيـا نــۀ لري دُنيـا کښې پـه هـر بـاب
حسـنؓ دے کۀ حسينؓ دے هر نوسے دَ پاك نبی ﷺ
قسـم دے پــه دُنيـا ئـې هــر انسـان دے مـقـتـدی
د دوی پـــه اقتـدا کښـې مــولـىٰ ايښـے ډيـر ثـواب
ثـانـی پــه دُنيـا نــۀ لري دُنيـا کښې پـه هـر بـاب
يو ګل پـه دې ګلونو کښـې حسّانؓ سره بلالؓ دے
هر ګـل پـه دې جهان کښې لاثانی پـه خپل جمال دے
قـرآن ورتـــه ورکـړے ډيـر عــالـی اوچـت خـطـاب
ثـانـی پــه دُنيـا نــۀ لري دُنيـا کښې پـه هـر بـاب
قسـم دے ثـانــی نــۀ لـري يـاران دَ پـاك نبـی ﷺ
روان دَ دوی نـــه وروستـــو هـريـو کـس دے نيك ولـی
دَ ربّ دے خپـل رسـول ﷺ دَ پـاره دغــه انتـخـاب
ثـانـی پــه دُنيـا نــۀ لري دُنيـا کښې پـه هـر بـاب

وعظ ونصيحت

بُتــان دَ هــر بـدعـت بــه پـــه هــر در زۀ مــاتــومُ
ســامــان بـــه پـــه دُنيــا کښـــې د ضــرر زۀ مـاتـومُ
زۀ مينـــــه مـحبــت بـــه دَ سـنـت سـره کـومُ
وعـده بـــه پـــه دُنيـــا کښـــې دَ هــر شـر زۀ مــاتـومُ
تـوحيـد بـانـدې قـائـم بـه پـه جهان کښې زۀ اُوسيـږم

دُنيا كښې به دَ شرك هريو حجره ماتوم
په لار دَ محمد ﷺ باندې قائم به زه وُسيږم
روږې باندې شيطان له به ځيګر زه ماتوم
بُتان دَ جهالت به هر طرف ته غُرځوم
هر بُت به دَ غرور دَ هر يشر زه ماتوم
نفرت نه به نفرت ساتمه دلته په هر در
په پلك دَ محبت به دغه غر زه ماتوم
د دين نه چې کړی لرے تا احمده! په جهان
قانون به دغه هر ځائے دَ افسر زه ماتوم

## وعظ او نصيحت

دَ بدعت په لار روان تېکري خوري
ياران هر ځائے دَ شيطان تېکرې خوري
په ګناه پسې چې ګرځي په جهان
داسې هر ځائے هر انسان تېکرې خوري
چې دَ شرك په بدبوئي باندې اخته دي
داسې خلق دَ جهان تېکري خوري
دَ سنت په لار کښې نشته دمے تېکري
په دُنيا کښې بدعتيان تېکري خوري
چې دَ شرك او دَ بدعت سره يو ځائے وي
په دُنيا داسې کسان تېکري خوري

بـې مـقـصـده پـه دُنيـا کښې چې څوك ګرځـي
دغـــه خـلـق کــړی نـقـصــان تـکــرې خـوری
چــې قــرآن تـــه دَ چـــا شـــا وی پـــه جهـــان
دُښـــمـــنـــان تـول دَ قـــرآن تـکـــرې خــوری
دَ اسـلام پــه طــريـقــه ئـې چـې ژوند نـــهٔ وی
داســـے خـــلــق وی حيــــران تـــکـــرې خـــوری
چـې اخـلاص ئـې شـامـل نـهٔ وی پـه عـمـل کښې
احـــمـــد وائـــی دَ مــــردان تـــکــــرې خـــوری

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

خبـرې دَ مـکـې او مـديـنې دی پـه مـا ښـهٔ لـګـی
خبـرې دَ نبـی ﷺ دَ لار کـوڅـې دی پـه مـا ښـهٔ لګـی
خبـرې دَ رسـول الـلّـه ﷺ دَ کـور کـلـی وطـن دی دا
خبـرې دَ رسـول الـلّـه ﷺ دَ پـاك ښـائـستـهٔ چمن دی دا
خبـرې دا دَ نـور ښـکـلـے روضـې دی پـه مـا ښـهٔ لګـی
خبـرې دَ مـکـې او مـديـنې دی پـه مـا ښـهٔ لـګـی
خبـرې دَ رسـول الـلّـه ﷺ دَ ښـکـلـے دَ اصـحـابو؇ دی
خبـرې دَ رسـول الـلّـه ﷺ قسـم دے دَ احبـابو؇ دی
قسـم دے دَ انـوارو تـذکـرې دی پـه مـاښـهٔ لـګـی
خبـرې دَ مـکـې او مـديـنې دی پـه مـا ښـهٔ لـګـی
خبـرې دَ صـديـق؇ او دَ عـمـر؇ قسـم دے خـوند کـوی

خبـرې دَ عثـمـانؓ او دَ حیـدرؓ قسـم دے خـونـد کـوی

قسم دے دا لـه قـنـدو نـه خوږې دی په ما ښهٔ لګی

خبـرې دَ مـکـې او مـدینې دی پـه مـا ښـهٔ لـګـی

خبرې دَ حسنؓ او دَ حسینؓ دی ښـکلے ښکلے هم

احـمـدعـلـی د دوی دغــه خبرے دی لیـکلے هـم

قسم دے انسـانـان دا فـرښتـے دی په ما ښهٔ لګـی

خبـرې دَ مـکـې او مـدینې دی پـه مـا ښـهٔ لـګـی

★★★★★★★★★

تمت بحمد اللّٰه تعالیٰ وبتوفیقه

وما توفیقی الابالله العلی العظیم .ربنا تقبل منا انك انت

السمیع العلیم وتب علینا انك انت التواب الرحیم .

وصلی اللّٰه تعالیٰ علیٰ خیر خلقه محمد واٰله واصحابه

اجمعین .اٰمین یارب العٰلمین یارب العٰلمین یارب العٰلمین

## بسم الله الرحمٰن الرحیم

## حمد باری تعالیٰ

تـــل دے تـــل دے تـــل ، اَلـــلّٰـــه
هـــر ځــائـــے ستــا دے مَــل ، اَلــلّٰــه
لَـــمْ یَـــلِــــدْ او لَـــمْ یُـــوْلَـــد
وائـــــــــی داســـــــــي نیك او بـــــــد
نُـــورډَ هـــــر مــحـــفــل ، اَلـــلّٰـــه
تـــل دے تـــل دے تـــل ، اَلـــلّٰـــه
هـــم خبیـــــــر دَ هـــــــر خبـــــــر
پـــه هــــر چـــا ســـاتـــی نـــظـــر
مـــونــــږ تــــه کـــړی کتـــل ، اَلــلّٰـــه
تـــل دے تـــل دے تـــل ، اَلـــلّٰـــه
مهـــــریـــــان صـــفـــــت لـــــری
هـــــر صـــفـــــت اوچـــــت لـــــری
نـــاصـــــر تـــــل دَ بـــــل ، اَلــلّٰــه
تـــل دے تـــل دے تـــل ، اَلـــلّٰـــه
رَبّ کـــــــړل تـــــول پیـــــدا دلتـــــه
هـــــر څــــــــۀ دَ دُنیـــــا دلتـــــه
هـــــر څـــــۀ هـــــر مـــحـــل ، الـــلّٰـــه
تـــل دے تـــل دے تـــل ، اَلـــلّٰـــه

هـــــم قــــدیــــــر روزی رســـــــان
دا دے ذَاحــــــمــــــــد بیــــــــان
خـــونـــد کـــړی لـــفـــظ وئیـــل ،اَلــلّٰــــه
تـــل دے تـــل دے تـــل ،اَلـــلّٰــــه

حمد باری تعالیٰ

یـــو دے یـــو دے تـــل ،اَلـــلّٰـــه
نـــهٔ مـــنـــو مـــونـــږ بـــل ،اَلـــلّٰـــه
نشتــــــه بـــل مـــعـبـــود زمـــونـــږ
نشتــــــه بـــل مســـجـــود زمـــونـــږ
دا دے زمـــونـــږ خپـــل ،اَلـــلّٰـــه
یـــو دے یـــو دے تـــل ،اَلـــلّٰـــه
تـــل پـــه مـــونـــږ دے مهـــربـــان
دَ هـــــر چـــــا روزی رســـــان
خـــونـــد کـــوی وئیـــل ، اَلـــلّٰـــه
یـــو دے یـــو دے تـــل ،اَلـــلّٰـــه
هـــر چـــانـــه خبـــر هـــغـــه
هـــر ځـــائـــے پـــه هـــردر هـــغـــه
تـــل دَ هـــر مـــحـــفـــل ،اَلـــلّٰـــه
یـــو دے یـــو دے تـــل ،اَلـــلّٰـــه
دا ده عـــقیـــده بـــشـــکـــلـــے

دا په هر حصه ښکلي
یو زمونږ منزل، اَلله
یو دے یو دے تل، اَلله
دا ده ذَاحمد وینا
دا ذَنیك او بد وینا
هر ځائے په ساحل، اَلله
یو دے یو دے تل، اَلله

## حمد باري تعالیٰ

هریو څیز د دې جهان دے ستا مخلوق
لاندې زمکه پاس اسمان دے ستا مخلوق
فرشتو سره چې څومره پیریان شته دے
دا انسان هریو حیوان دے ستا مخلوق
بادشاهان فقیران تا دي پیدا کړي
هر غریب سره هر خان دے ستا مخلوق
هر مشرك او بدعتي د دې جهان
هر مؤمن او مسلمان دے ستا مخلوق
ونې بوټي هر ذره دَ کائنات
هر ځنګل او بیابان دے ستا مخلوق
دغه پټ ښکاره چې څومره په جهان دي
دا مکان او لامکان دے ستا مخلوق

هر بُلبل هریو ازغي دَ کائنات
هریو ګل دَ ګلستان دے ستا مخلوق
دَ ګرمی سره یخني په دي جهان
هر سپرلے هریو خزان دے ستا مخلوق
هر قلم په لاس کښي دلته دَلیکلو
دَاحمد هریو بیان دے ستا مخلوق

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

یاد دَ مدیني منوري ښائسته باغونه کړه
یاد ورسره دغه رنګ ښائسته ښکلی ګلونه کړه
در دَ مصطفیٰ ﷺ دے څکه در دے په دُنیا ښکلے
در دَ نُور رڼا دے څکه در دے په دُنیا ښکلے
ځان سره شامل په هره لاره دا یادونه کړه
هلته کښي اصحابؓ دَ محمد ﷺ کوی خوبونه تول
هلته کښي احبابؓ دَ محمد ﷺ کوی خوبونه تول
یاد ددغي در تول خوشبوداره محفلونه کړه
در دا دَ صدیقؓ دے دغه در دے دَ حضرت عمرؓ
در دا دَ عثمانؓ دے هم دے در دا دَ علی حیدرؓ
یاد د دغي در دي جهان ښائسته لعلونه کړه
یاده کور کوڅه کړه اے احمده! دَ احمد نبی ﷺ
یاد کړه محفلونه په دُنیا دَ محمد نبی ﷺ

یـاد ددغـي دربنـۀ عـالیشـان تـول حـدیثـونـه کړه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

لاړ چـي مـدینـي تـه شي ډیر ډیـر ئـي دیدنونـه کړه
بیـا زمـا جـانـان تـه پـه کښي ډیر ډیر سلامونه کړه
هـلتـــه هـر قـدم کښي ستـا ادب او احتـرام چـي وي
هلتـه هـر قـدم کښـي دا ادب سحـر ماښام چـي وي
هلتـه پـه دي خـاوره قـدرمـند خپـل قـدمونـه کړه
هـلتـــه هـریـو څیـز سـره دَزړۀ نــه مـحبـت کـوه
هـلتـــه کښـي شـکـرونـه دَاللّـهُ ربُّ العـزت کـوه
هلتـه کښي دَ پـاك اللّٰـه دَ پاك نبی ﷺ ذکرونـه کړه
هـلتـــه هـر سـحـر هریـو مـاښـام بیـا تـلاوت کـوه
هلتـه هـریـو کـار دَ مـصطفیٰ ﷺ دَ نُور سنت کـوه
ښـکلی پـه دے کـار سره عـالی دغـه فکرونـه کړه
هـلتـــه سـلامـونـــه او درود پـــه مـحـمـد ﷺ وایـــه
بیـا بیـا سـلامـونــــه ورتـــه دغـــه دَ احـمـد وایـــه
ښـۀ ښـائسـتـۀ دُنیـا کښـي هـم پـه دي سره خیالونه کړه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښـکـلـے دَ نبـی ﷺ پـه ذکـر دغـه مـحفلـونـه کـړه
نُـور دَ مـحـمـد ﷺ سـره ښائستۀ ښکلے سوچونه کړه
نــور دَ مــحـمـد ﷺ دی ښـائـسـتـۀ کـړی دَ جهـان خلق

نُور دَ محمد ﷺ دي ښائسته په آسمان خلق
نُور سره دَ پاك نبي ﷺ ښائسته ټول منزلونه کړه
نور دَ محمد ﷺ ده ښائسته کړے دا فضا بره
نُور دَ محمد ﷺ ده ښائسته کړے دا هوا بره
نُور سره دَ پاك نبي ﷺ ښائسته خپل اندامونه کړه
نور دَ محمد ﷺ دے ښائسته کړے دَ دُنيا سحر
نُور دَ محمد ﷺ دے ښائسته کړے دَ دُنيا قمر
نُور سره دَ پاك نبي ﷺ ښائسته خپل عملونه کړه
نُور دَ محمد ﷺ سره ښائسته هره صحرا ده هم
نُور دَ محمد ﷺ سره ښائسته زما وينا ده هم
ښکلے اے احمده ! دُوي سره دغه شعرونه کړه

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زما جانان ښکلے دے دوست دَ سبحان ښکلے دے
په هر صفت سره تل دوست دَ رحمان ښکلے دے
څومره ښُکلا چې ښکاري
دا په دُنيا چې ښکاري
دا په هر خوا چې ښکاري
دا نُور رڼا چې ښکاري
حسين له دے ټولو دے ، نبي سلطان ﷺ ښکلے دے
زما جانان ښکلے دے دوست دَ سبحان ښکلے دے

د دې دُنیا شاهان

کوي د ده تول اعلان

وائي دا تول جهان

دا سې کوي بیان

تاجدار دَ دوی تولو دے په هر مکان ښکلے دے

زما جانان ښکلے دے دوست دَ سبحان ښکلے دے

وائي عرب عجم

وائي هر یو عالَم

دغه بني آدم

خوره په دي قسم

امام دَ تولو خلقو ، کُل دَ جهان ښکلے دے

زما جانان ښکلے دے دوست دَ سبحان ښکلے دے

دا عقیده زما ده

دا عقیده رښتیا ده

دا عقیده صفا ده

دغه صفا وینا ده

خاتم دَ مُرسلانو ، په هر یو آن ښکلے دے

زما جانان ښکلے دے دوست دَ سبحان ښکلے دے

★★★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زهٔ یو امتی دَ محمد خیر البشر ﷺ یمه
زهٔ په غلامانو کښي غلام د دغي دریمه
زهٔ یم امتی دَ محمد خیر الابرار ﷺ نبی ﷺ
زهٔ یم امتی دَ مرُسلانو دَ سردار نبی ﷺ
زهٔ په دي نسبت سره قسم دے بختوریمه
زهٔ په غلامانو کښي غلام د دغي دریمه
زهٔ یم امتی دَ مُرسلانو دَ خاتم نبی ﷺ
دا رنګ په دُنیا کښي دَ نبیانو دَ خاتم نبی ﷺ
زهٔ په دي رڼا سره قسم دے منوّر یمه
زهٔ په غلامانو کښي غلام د دغي دریمه
زهٔ یم اُمتی دَ منوّر رڼا خیر الوریٰ ﷺ
زهٔ یم امامانو دَ بدر الدجیٰ ﷺ
زهٔ په دي نبست سره عالی په بحروبر یمه
زهٔ په غلامانو کښي غلام د دغي دریمه
زهٔ یم امتی په کائنات کښي دَ صادق امین ﷺ
زهٔ یم امتی په صالحانو کښي دَ بهترین
زهٔ په دي خوشبو سره قسم دے معطَر یمه
زهٔ په غلامانو کښي غلام د دغي دریمه
زهٔ یم امتی دَ مزمل او مدثر نبی ﷺ

زهٔ یم امتي دَ دلبرانو دَ دلبر نبي ﷺ
زهٔ احمد له دي خبري دلته بهٔ خبر یمه
زهٔ په غلامانو کښي غلام د دغي دریمه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

اے مسافره ! ماله حال دَ مدیني راوړه
حال د رسول اللّٰه ﷺ دَ کلي دَ کوڅي راوړه
لاړ چي شے کله مدیني ته دَ خیرالوریٰ ﷺ تهٔ
لاړ چي شے کله لار کوڅي ته دَ خیر الوریٰ ﷺ تهٔ
ماله احوال ددغي در دَ باغیچي راوړه
اے مسافره ! ماله حال دَ مدیني راوړه
لاړ شهٔ زر لاړ حصاریږه مه په لاره کښي نُور
شابه روان شهٔ مدینه ته، دَ روضي تهٔ په لور
ځان سره حال ددغي در دَ هر ذرې راوړه
اے مسافره ! ماله حال دَ مدیني راوړه
په هریو څیز دَ مدیني باندي نظر ساتهٔ تهٔ
ځان دَ لمحي لمحي نه هلته کښي خبر ساتهٔ تهٔ
ماله احوال دَ دغي در دَ ننداري راوړه
اے مسافره ! ماله حال دَ مدیني راوړه
دَ زړهٔ علاج ددغي در په هریو کور کښي وکړه
دعا د دغي ځائے دَ پاره په هر لور کښي وکړه

احوال دَ مینې محبت دَ هر حصې راوړه
اے مسافره ! ماله حال دَ مدینې راوړه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مکه شوله بدله شوه مکه مکرمه
شوه جوړه مدینې نه مدینه منوره
بدله شوه مکه دا په نسبت دَ محمد ﷺ
بدله شوه مکه دا په عظمت دَ محمد ﷺ
رڼا په دوی سره شوله دُنیا کښې هر حصه
مکه شوله بدله شوه مکه مکرمه
بدل شول حالات دَ مدینې منورې
ښکاره شول کمالات دَ مدینې منورې
ښائسته ئې دَ دُنیا شوه دَ دُنیا هره ذرّه
مکه شوله بدله شوه مکه مکرمه
عرب کښې عربیان شول بدل په هر صفت
عجم کښې عجمیان شول بدل په حقیقت
بدله دَ عجم او دَ عرب شوله نقشه
مکه شوله بدله شوه مکه مکرمه
رڼا شو هر طرف ته دَ دُنیا هغه تورتم
بدل په محمد ﷺ سره حالات شول دَ عالم
هرچا کښې راپیدا شوه اے احمده ! ښهٔ جذبه

مـکـــه شولـــه بـدلـــه شـوه مـکـــه مـکـرمـه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

قـدم پـــه خيـال اُوچتـوه دا دَ مـحبـوب کـلـے دے
دَ مـحـمـد خيـر الابـرار ﷺ دے دَ مـطلوب کلے دے

پـه بـازارونـو او کـوڅـو کښـې کـلـه ګرځـے چې تـهٔ
د دې وطـن پـه بـاغيـچـو کښې کـلـه ګرځـے چې تـهٔ
خيـال کـوه خيـال دغـه تسـکيـن ددې قلوب کلے دے
دَ مـحـمـد خيـر الابـرار ﷺ دے دَ مـطلوب کلے دے

هـريـو قـدم ښـهٔ پـه مـزه اوپـه سـکـون سـره ږده
دغـه پـه ميـنـه مـحبت پـه ښـهٔ جُـنـون سـره ږده
هغـه عـالـی ليـکـلـے شـوے دا مکتوب کلے دے
دَ مـحـمـد خيـر الابـرار ﷺ دے دَ مطلوب کلے دے

ذَرَه ذَرَه ئـې دَ نبـی ﷺ پـه مـحبـت ګـواه ده
ذَرَه ذَرَه ئـې دَ نبـی ﷺ پـه رسـالـت ګـواه ده
پاك نبـی ﷺ تـه په هر نسبت سره منسوب کلے دے
دَ مـحـمـد خيـر الابـرار ﷺ دے دَ مطلوب کلے دے

يـاران پـه دې کښې دَ رسـول اللّٰه ﷺ وسيږی ښکلی
پـه دې خبـره دې ګـواه وائـی احـمـد دا کـلـی
دا دَ سـعـدؓ او دَ سـلـمـانؓ او دَ ايـوبؓ کـلـے دے
دَ مـحـمـد خيـر الابـرار ﷺ دے دَ مطلوب کلے دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ربَـه! پـه دې سترګـو راتـه ګـل دَ جهـان اُوښـايـه
اُوښــايـــه وطــن راتـــه دَنُــور او عــرفــان اُوښــايــه
اُوښـــايـــه وطـــن راتـــه دَ سيَـدالابــرار نبــي ﷺ
اُوښـــايـــه چــمــن راتـــه دَ سيَـدالابــرار نبــي ﷺ
ربَـه پـه دې سترګـو راتـه هغـه مکـان اُوښـايـه
اُوښــايـــه وطــن راتـــه دَنُــور او عــرفــان اُوښــايــه
اوښـــايـــه مــزار راتـــه دَ سيَـدالـوریٰ نبــي ﷺ
اوښـــايـــه دربـــار راتـــه دَ سيَـدالـوریٰ نبــي ﷺ
ربَـه! ددې زړۀ راتـه سکـون اطـمينـان اُوښـايـه
اُوښــايـــه وطــن راتـــه دَنُــور او عــرفــان اُوښــايــه
اوښـــايـــه يـــاران راتـــه دَ احسـن الـوریٰ نبــي ﷺ
اُوښـــايـــه يـــاران راتـــه دَ نُـور بـدالـدجیٰ نبــي ﷺ
ربَـه! پـاك وطـن راتـه دَ حضرت عثمانؓ اُوښايـه
اُوښــايـــه وطــن راتـــه دَنُــور او عــرفــان اُوښــايــه
اُوښـايـه لـعـلـونـه دَ رسول ﷺ دَ پـاك وطـن راتـه
اُوښـايـه ګـلـونـه دَرسول ﷺ دَ پـاك چـمـن راتـه
ربَـه! تـۀ احـمـد تـه دغـه درعـاليشـان اُوښـايـه
اُوښــايـــه وطــن راتـــه دَنُــور او عــرفــان اُوښــايــه

★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

رښه ! په دې سترګو راته ښکلے جانان اوښايه
اوښايه محبوب راته دَ هر مسلمان اوښايه
چا بانديې عاشق چې هر بشر دے دَ دُنيا دَ در
چا بانديې عاشق چې بحروبر دے دَ دُنيا دَ در
رښه ! هغه زړۀ راته دَ هريو اَسمان اوښايه
چا سره چې مينه په دُنيا کښې دَ اشجارو وه
چا سره چې مينه په دُنيا کښې دَ احجارو وه
رښه ! په دُنيا راته هغه مهربان اوښايه
چاسره چې مينه حيواناتو دَ دُنيا کړه
چاسره چې مينه دَ صحرا ټولو ذرَاتو کړه
ماته په دې سترګو هغه ښکلے انسان اوښايه
چاسره چې مينه کافرانو دَ دُنيا کړله
چا سره چې مينه مشرکانو په هرخوا کړله
رښه ! ددې زړونو راته هغه سلطان اوښايه
چا سره چې مينه اے احمده ! عربيانو کړه
چا سره چې مينه په عجم کښې عجميانو کړه
رښه ! په دې سترګو راته هغه ذيشان اوښايه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

لاړ به زۀ يو وارَ مدينې په طرف شم

لاړ به دَ نبي ﷺ دَ لار کوڅې په طرف شم
رب ته که منظوره په جهان باندې وي دا
رب ته کۀ منظوره په يو اَن باندې وي دا
لاړ به د دُنيا د دې حصې په طرف شم
لاړ به زۀ يو وار دَ مدينې په طرف شم
رب ته کۀ منظوره وي ليکلے په تقدير وي
رب زما ليکلے کۀ ديدن دَ نُور بشير وي
لاړ به دَ نبي ﷺ دَ باغيچې په طرف شم
لاړ به زۀ يو وار دَ مدينې په طرف شم
رب ته کۀ منظوره وي ديدن د دغې ښار
رب ته کۀ منظوره وي ديدن دَ پاك مزار
لاړ به دَ رسول ﷺ ښکلې روضې په طرف شم
لاړ به زۀ يو وار دَ مدينې په طرف شم
رب ته کۀ منظوره وي اورحم کړې په ما
دلته کښې زما دَ زړۀ پوره شي التجا
لاړ به زۀ احمد دَ نُور جلوې په طرف شم
لاړ به زۀ يو وار دَ مدينې په طرف شم

دَ بدعت نقصان

بدعت دَ انسانانو هريو کور تباه کوي
دُنيا کښې هر انسان په هريو لور تباه کوي

بـدعـت كښـي فـائده نشتـه دَ انسـان دَ پاره دلته
بـدعـت كښـي فـائده نشتـه مسـلمان دَ پاره دلتـه
بـدعـت دغـه دُنيـا كښـي سپـين اوتـور تبـاه كـوى
دُنيـا كښـي هـرانسـان پـه هـريـو لـور تبـاه كـوى
بـدعـت لـويـه ګـنـاه ده داسـى وائـى عـالـمـان
بـدعـت لـويـه ګناه ده داسـى وائـى ټـول جهـان
بـدعـت دَ انسـانـانـو دغـه ګـور تبـاه كـوى
دُنيـا كښـي هـرانسـان پـه هـريـو لـور تبـاه كـوى
بـدعـت دَ شـرك نـه پاس لـويـه ګناه سره يادېږى
بدعـت تـورې تيـرې سره هرځائے كښي بيانيـږى
بـدعـت دے اور دے اور انسـان دا اُور تبـاه كـوى
دُنيـا كښـي هـرانسـان پـه هـريـو لـور تبـاه كـوى
بـدعـت پـه حـقيـقـت كښي پـه اسلام ده اضافـه
بـدعـت پـه شـريـعـت كښـي دَ حـرام ده اضـافـه
احـمـد عـلـى بـدعـت هـريـو پـه زور تبـاه كـوى
دُنيـا كښـي هـرانسـان پـه هـريـو لـور تبـاه كـوى

وعظ ونصيحت

خـوشبـو ده پـه دُنيـا دَ هـريـو ګـل جُدا جُدا
خـوشبـو لـرى دُنيـا كښـي هـر مـحفل جُدا جُدا
اصـحـابؓ دَ مـحـمـد ﷺ دى پـه جهان دَ رڼا ستـورى

انوار لــری دوی دلتـــه کښــې تول خپل جُدا جُدا
سنـت او پـه بدعـت کښـې ډیر دے فرق په جهان
اثــــر دے دَ هـــــر وعــــظ او کـــنـــځــل جُـــدا جُـــدا
بــدلـــه ده پـــه مـحـشــر کښـې دَ دُنیـا دَ هـــر عـمـل
ثــواب شتـــه دے جـــزا دَ هـــر عــمــل جُـدا جُـدا
از غـــــی او دَ ګـــــلابـــــو دے جُــــدا جُـــدا اثـــــر
مـمـتــاز پـــه خپـل صـفـت سـره دی تـل جُدا جُدا
احـمـد عـلـی دُنیـا کښې دَ هر خیز دے خپـل اثر
دا ستـــرګـــې وی یـــو ې خـــو وی کتـــل جُـدا جُـدا

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

غـواړه دَ خپـل ربّ نــه مدینــه دَ مصـطفیٰ ﷺ کلے
غــواړه پـــه دُنیــا کښــې دَ دُنیـا دغـــه اعلـیٰ کلـے
دلتــه کښې صدیق؄ عـمرؓ عثـمانؓ علی حیدرؓ وُسی
دلتـه کښې ښائستـه ښکلی یاران دَ پیغمبر ﷺ وُسی
غـــواړه دَ مـــولـــیٰ نــــه دَ دُنیـــا دغـــه رنـــا کـــلـــے
غــواړه پـــه دُنیــا کښــې دَ دُنیـا دغـــه اعلـیٰ کلـے
دا کُـور دَ حسـن حسینؓ دے کلـے دَ حـضـرت بـلالؓ
ښـکـلـے دے پـه دُوی کښې هریو ګل دے هریو باکمال
نشتـه نشتـه دغـه شـان دُنیـا کښې پـه یو خوا کلـے
غــواړه پـــه دُنیــا کښــې دَ دُنیـا دغـــه اعلـیٰ کلـے

دلتــه کښي مـوجود دی هم دَ وحی برکـات دَ ربَ

دلتــه کښي موجود دی هم دَ وحی انوارات دَ ربَ

دغـه شـان بـه نـۀ وی بل ښائستـۀ په دې دُنیـا کلـے

غـواړه پــه دُنیـا کښـې دَ دُنیـا دغــه اعلـیٰ کلـے

هـر ساعـت وریـږی کور پـه کور دلتـه رحـم وکرم

خـوش دے دغـــه در هـم دَ عــرب او ددې ټـول عـجم

اے احـمـده ! دلتـــه ذکـر کـړے تــا دے دا کلـے

غـواړه پــه دُنیـا کښـې دَ دُنیـا دغــه اعلـیٰ کلـے

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ مـدینې ښـائستـه جانانـه ﷺ ! ستـا امَتی یمـه زۀ

جُدا چې مـا نـۀ کـړے لـه ځانـه ! ستـا امَتی یمـه زۀ

تـــــۀ ئـــې مـــحبـــوب دَ ربَ مـــنـــــان

تـــــۀ ئـــې مـــحبـــوب دَ ټـــول جهـــــان

ګـرانــه حسینـــه قـدردانــه ! ستـــا امَتـی یمـه زۀ

دَ مـدینې ښـائستـه جانانـه ﷺ ! ستـا امَتی یمـه زۀ

تــــه هـــر مـؤمـــن لــــه نُــور رنـــا ئـــې

تـــــۀ هـــم خـــاتـــم الانبیـــاء ﷺ ئـــې

دَ سلطـانـانو اے سلطـانـه ! ﷺ ستـا امَتی یمـه زۀ

دَ مـدینې ښـائستـه جانانـه ﷺ ! ستـا امَتی یمـه زۀ

تـــــۀ دَ هـــر چـــا سیـــورې رحـــمـــت ئـــې

تــــهٔ مـــجسَــمـــــه دَ مـــحبـــت ئـــي

کـریـم دے ذات سـتـا مهـربـانـه ! ﷺ سـتـا امّتي يمه زهٔ

دَ مـديـنـي ښـائسـتـه جـانـانـه ﷺ ! سـتـا امّتي يمـه زهٔ

دَ امـــــامـــــانـــو تــــــهٔ امــــام ﷺ ئـــي

د دې دُنيـــــا مــــــاهِ تـــمـــــام ئـــــي

نـمـر پـه دُنيـا کـښـې ئـې روښانـه ! ﷺ سـتـا امّتي يمـه زهٔ

دَ مـديـنـي ښـائسـتـه جـانـانـه ﷺ ! سـتـا امّتي يمـه زهٔ

شـــفيــــع پـــــه ورځـــي دَ مـــحشـــر ئـــي

ســـاقـــی مـــحشـــر کـښـــي دَ کـــوثـــر ئـــي

دوسـت دَ مـولٰی غـنـی سـبـحـانـه ! سـتـا امّتي يمـه زهٔ

دَ مـديـنـي ښـائسـتـه جـانـانـه ﷺ ! سـتـا امّتي يمـه زهٔ

تـــهٔ لــــه هــــرچــــا نــــه ښـــهٔ اوچـــت ئـــي

تـــهٔ مـجـمـوعـــه دَ هـــر صـــفـــت ئـــي

اے دَ هـــرچـــا دَ زړهٔ ارمـانــه ! سـتـا امّتي يمــه زهٔ

دَ مـديـنـي ښـائسـتـه جـانـانـه ﷺ ! سـتـا امّتي يمـه زهٔ

احـــمـــد سـتــــا ذکـــــر بــــار کــــړي

ذکـــــر دے دلتــــــه کښـــي دَ ښـــار کــــړي

اے نـورانـی صـفـت انسانـه ! سـتـا امّتي يمـه زهٔ

دَ مـديـنـي ښـائسـتـه جـانـانـه ﷺ ! سـتـا امّتي يمـه زهٔ

★★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

قدم په خيال اُوچتوه دَ پيغمبر ﷺ کلې دے
دَ دلبرانو په دُنيا کښې دَ دلبر ﷺ کلې دے

دغه کوڅې او بازارونه چې ښائسته دي ښکلې
د دغې در دغه څيزونه چې ښائسته دي ښکلې
ځکه چې دا دَ محبوبانو دَ افسر کلې دے
دَ دلبرانو په دُنيا کښې دَ دلبر ﷺ کلې دے

ښهٔ په مزه مزه مزل په دغه لارو کوه
دا رنګ حيا سره کتل په دغه لارو کوه
ځکه چې دا دَ رهبرانو دَ رهبر کلې دے
دَ دلبرانو په دُنيا کښې دَ دلبر ﷺ کلې دے

دلته روضه دَ محمد خير الابرار ﷺ ښکلي ده
هره کوڅه دَ محمد خير الابرار ﷺ ښکلي ده
دا دَ صديقؓ عمرؓ عثمانؓ او دَ حيدرؓ کلې دے
دَ دلبرانو په دُنيا کښې دَ دلبر ﷺ کلې دے

په تذکره ئې نهٔ مړيږي عاشقان خلق
په تذکره ئې نهٔ مړيږي دَ جهان خلق
احمده! دغه دُنيا کښې معطَر کلې دے
دَ دلبرانو په دُنيا کښې دَ دلبر ﷺ کلې دے

★★★★★★

## نظم

څوک چې دَ نیکۍ کارونه نۀ کوي
هغه په دُنیا کښې دلته څۀ کوي
څوک چې دَ شیطان په لاره تلل کوي
څوک چې دَ نقصان په لاره تلل کوي
دا کارونه دلته کښې تول خرۀ کوي
څوک چې دَ نیکۍ کارونه نۀ کوي
څوک چې دَ بدعت سره کوي مینه
څوک چې دَ ظلمت سره کوي مینه
دا سے کار دُنیا کښې هر اُودۀ کوي
څوک چې دَ نیکۍ کارونه نۀ کوي
څوک چې دَ ګناه په لاره تلل کوي
څوک چې دَ ګمراه په لاره تلل کوي
دغې باندې هریو شیطان زړۀ کوي
څوک چې دَ نیکۍ کارونه نۀ کوي
څوک چې دَ نفرت سره کوي مینه
څوک چې دَ بدعت سره کوي مینه
اے احمده! کار دغه تول غلۀ کوي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

تا سره روښانه دَ مکې مدینې ښار شو

تــا ســره روښــانــه مـديـنــه کښې هــر دربــار شــو
تـــا ســـره روښـــانـــه شــوه فـضـــا دَ مـديـنـي بــره
تـــا ســـره روښـــانـــه شـوه فـضـا دَ هـــر کـوځــې بــره
تـــا ســـره روښـــانـــه خـوشبـودار هـــر ګـلــزار شــو
تـــا ســـره روښـــانـــه دَ مــکـــې مـديـنـې ښــار شـو
تـــا ســـره روښـــانـــه شـول انـصــار دَ مـديـنـې دَ در
تـــا ســـره روښـــانـــه شـو دُنیـــا کښـې دَ دُنیـــا بشــر
هــر ځـــائـے ستـــا وجـود سره خزان پسـې بهــار شــو
تـــا ســـره روښـــانـــه دَ مــکـــې مـديـنـې ښــار شـو
تـــا ســـره رخـــصـــت دَ جـهـــالـت شـولـې تيــارې تـولـې
تـــا ســـره رخـــصـــت دَ ضـلالـت شـولـې تيــارې تـولـې
تـــا ســـره دُنيـــا کښـې بــې ايـمـــانـه ايـمـاندار شـو
تـــا ســـره روښـــانـــه دَ مــکـــې مـديـنـې ښــار شـو
تـــا ســـره رڼـــا دَ شـــريـعـــت شـــوه پـــه جـهـــان خـوره
تـــا ســـره رڼـــا دَ هـدايـت شـــوه پـــه جـهـــان خـوره
تـــا ســـره مشـرك لـــه خپـلـه شرکـه تـويـه ګـار شـو
تـــا ســـره روښـــانـــه دَ مــکـــې مـديـنـې ښــار شـو
تـــا ســـره وفـــا حيـــا پـــه هـــر طـرف خـوره شـولـــه
حــقـــه دَ قـــرآن ويـنـا پـــه هـــر طـرف خـوره شـولـــه
هـــريـــو دَ قـــرآن ســنـــت پـوره ښـــۀ تـــابـعـدار شـو

تــا ســره روښــانــه دَ مــکــي مــديـنـي ښـار شـو
تــا ســره هــر کـور دَ بـدعتيــانو تــول تبـاه شـولو
کور په دي جهـان کښي تـول تبـاه دَ هر ګمراه شولو
اے احــمــده ! هــر ســړی نــه جــوړ پـوره ديـنـدار شـو
تــا ســره روښــانــه دَ مــکــي مــديـنـي ښـار شـو

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

تــا ســره دا ژونــد زمــا ښـائستــهٔ پــه هــره لار شـو
جـوړ لـکـه سـحـر غـونـدي ښـائستـهٔ پـه هريو دار شو
تاسره ژونـدون مـي پـه هـر لـور بـاندي ښائستهٔ شولو
تــاســره ژونــدون مــي دَ ګــلــونــو ګـلـدستــه شـولـو
ستـا پـه شـريـعـت بـانـدي مـي ژونـد لـکـه ګلزار شو
جـوړ لـکـه سـحـر غـونـدي ښـائستـهٔ پـه هريو دار شو
ستـا پـه طـريـقـه بـاندي ښـائستـهٔ پـه هريو در شولو
ستـا پـه طـريـقـه بـانـدي ښـائـستـهٔ شو منوَر شولو
ستـا پـه طـريـقـي سـره مـي ژونـد کښي زوږ بهـار شو
جـوړ لـکـه سـحـر غـونـدي ښـائستـهٔ پـه هريو دار شو
ستـا پــه طـريـقـه بـاندي لائـق دَ هـر صـفـت شـولـو
ستـا پــه طـريـقــه بـانـدي لائـق دَ هـر جـنـت شـولـو
ستـا پــه طـريـقـه بـاندي نـادانـه هـم هـوښيـار شـو
جـوړ لـکـه سـحـر غـونـدي ښـائستـهٔ پـه هريو دار شو

ستا په طریقه باندې لائق دَ محبت شولو
ستا په طریقه باندې لائق دَ هدایت شولو
ستا په طریقه باندې احمد هم خوشبودار شو
جوړ لکه سحر غوندې ښائسته په هریو دار شو

رباعی

زهٔ په سنت کښې خوشبوئی محسوسوم
په هر بدعت کښې بدبوئی محسوسوم
دَ شیطان لاره ده کمزوری ډیره
په دینداری کښې مضبوطی محسوسوم
ناکامی وینم دَ ابلیس په لار کښې
دَ ربَ په لار کښې کامیابی محسوسوم
تیرې په لار کښې دَ ګناه دَ وینمه
رڼا سنت کښې ابدی محسوسوم
لاره کړېده دَ شیطان ښکاری ماته
په دغه لاره کښې بدی محسوسوم
دَ قرآن لاره نیغه لاره ښهٔ ده
په دغه لاره کښې نیکی محسوسوم
احمد زهٔ خیر په هر سنت کښې وینم
زهٔ په دې لاره بندګی محسوسوم

★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښکارے راته ښکارے ته دَ زړهٔ په ائینه کښي
ښکارے تصوَر کښي راته ته په مدینه کښي
ښکارے تصوَر کښي راته دلته مخامخ
ښکارے په هر درکښي راته دلته مخامخ
ښکارے دَ نیکۍ راته په هریوه جمله کښي
ښکارے تصوَر کښي راته ته په مدینه کښي
ښکارے تصورکښي راته بره په اسمان
ښکارے تصور کښي راته نمر ددي جهان
ښکارے راته ښکارے دَ نبیانو ګلدسته کښي
ښکارے تصوَر کښي راته ته په مدینه کښي
ښکارے تصور کښي راته نُور دَ کائنات
ښکارے تصور کښي راته نُور دَ ټول جهات
ښکارے راته هرځائے دَ انوارو په چینه کښي
ښکارے تصوَر کښي راته ته په مدینه کښي
ښکارے راته ښکارے په مکان او لامکان کښي
وائي احمد وائي راته ښکارے په قرآن کښي
ښکارے راته ښکارے دَ قرآن هره صفحه کښي
ښکارے تصوَر کښي راته ته په مدینه کښي

★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

غوره په دُنيا کښې دَ هر چا نه بهترين دے
دغه محمد عربی ﷺ ښکلے دے حسين دے
هر چا نه اُوچت دے مرتبه کښې دَ دُنيا دَ در
پس له اٰخرين نه مرتبه کښې اوّلين دے
نُور رڼا دُنيا کښې په دُنيا کښې دَهر چا د در
ياد په مُرسلانو کښې امام المرسلين ﷺ دے
يادَ هر بشر دَ پاره سيورے دَرحمت دے تول
ربَ ورکړې د دُنيا ښکلے ائين دے
سيورے دَ شفقت دے په دُنيا کښې هر يتيم لره
هر ځائے کښې غمخوار دَ هر غريب هريو مسکين دے
ياد ښکلی اخلاقو سره در په دريادېږی هم
ياد په مرسُلانو کښې خاتم النبيين ﷺ دے
پاس له هر اٰسمانه ربَ له تلے ملاقات لره
دغه عقيده لره دغه مې يقين دے
کله مزمّل سره او کله مدثر سره
ياد دغه قراٰن کښې په طٰهٰ او په يٰسين دے
شافع محشر هغه دے ساقی کوثر نبی ﷺ
ياد په هر محفل کښې په محبوب دَ ربَ متين دے
هر ځائے پکاريږی دَ احمد علی وينا ده دا

باعثِ نجات ئي په دُنيا کښې دغه دين دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

څوك چې دَ رسول ﷺ په لاره تلۀ کوی
هغه هميشه به دلته ښۀ کوی
څوك چې دَ نبی ﷺ سره کوی مينه
څوك چې مدنی ﷺ سره کوی مينه
کار دَ هر نيکی به ښۀ په زړۀ کوی
څوك چې دَ رسول ﷺ په لاره تلۀ کوی
څوك چې دَ نبی ﷺ په لاره تلل کوی
کار چې دَ نبی ﷺ دَ رضا تل کوی
فکر دَ محشر په ورځ دَ څۀ کوی؟
څوك چې دَ رسول ﷺ په لاره تلۀ کوی
څوك چې دَ نبی ﷺ سره وفا کوی
څوك چې دَ رسول ﷺ ښۀ اقتدا کوی
دغه کار دُنيا کښې ژوندے زړۀ کوی
څوك چې دَ رسول ﷺ په لاره تلۀ کوی
څوك چې دَ نبی ﷺ په ادا ګانو مری
څوك چې دَ نبی ﷺ په وينا ګانو مری
غم به دَ محشر دَ ورځے نۀ کوی
څوك چې دَ رسول ﷺ په لاره تلۀ کوی

څوك چې دَ سنت سره كوي مينه
څوك چې دَ بدعت سره ساتي كينه
اے احمده! څوك چې ښهٔ كاتهٔ كوي
څوك چې دَ رسول ﷺ په لاره تلهٔ كوي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زهٔ په صحرا كښې دَ بدعت ازغي له سر ماتوم
بدبودار بوټي دغه هر ځائے په هر در ماتوم
زهٔ په هر خير سره هر شر ددې جهان ختموُم
زهٔ په سنت سره هر كانړے دَ ضرر ماتوم
زهٔ په رڼا دَ شريعت سره تيرې ختموُم
دَ بې ديني په دې جهان هريو حجر ماتوم
دَ عاجزي پيغام خورول زما مقصد دے دلته
زهٔ دَ غرور په سر ولاړ دلته هر غر ماتوم
زهٔ دَ شيطان لعين دُنيا كښې هر مكان غُرځوُم
دغه مكان زهٔ هر سحرا او مازيگر ماتوُم
كار دَ بدعت نه مې نفرت دے احمد وائي دغه
شاخ دَ ضرر زهٔ په دُنيا دَ هر شجر ماتوُم

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ بدعتيانو په دُنيا كښې ملگرتيا مهٔ كوه
دَ شيطانانو سره هيڅ كله وفا مهٔ كوه

دَ هــر ســنــت رڼــا ســره دلتــه ســفــر كــوه تــل
دَ شــريــعــت رڼــا ســره دلتــه ســفــر كــوه تــل
چې مونځ كوې نو مونځ كښې هيڅ كله بيا غلا مهٔ كوه
دَ شيــطــانــانــو ســره هيــڅ كــلــه وفــا مــهٔ كــوه
پــه طــريــقــه دَ مــحــمــد رسول اللّٰــه ﷺ تــل وُســه
پــه طريقــه دَ مــصــطفىٰ نورالهُدىٰ ﷺ تــل وُســه
كــارونــه هيــڅ كــلــه دُنيــا كښــې دَ ريــا مــهٔ كــوه
دَ شيــطــانــانــو ســره هيــڅ كــلــه وفــا مــهٔ كــوه
هــره ادا دَ مــحــمــد رســول اللّٰــه ﷺ نــقــل كــړه
وفــا حيــا دَ مــحــمــد رســول اللّٰــه ﷺ نقل كــړه
دُنيــا كښــې هيــڅ كــلــه عبــث هسې خــنــدا مهٔ كــوه
دَ شيــطــانــانــو ســره هيــڅ كــلــه وفــا مــهٔ كــوه
وايــه قــرآن دغــه قــرآن دے هــر بشــر لــه رڼــا
وايــه قــرآن دغــه قــرآن دے هــريــو در لــه رڼــا
پــه خپــل ايــمــان بــانــدې دَ شــرك ســره ســودا مهٔ كــوه
دَ شيــطــانــانــو ســره هيــڅ كــلــه وفــا مــهٔ كــوه
كــارونــه هــريــو دَ اســلام او شــريــعــت كــوه تــل
احــمــده! كــار پــه دې جهــان دَ نُــور سنــت كــوه تــل
صــحــيــح ويــنــا كــړه پــه دُنيــا بــده ويــنــا مــهٔ كــوه
دَ شيــطــانــانــو ســره هيــڅ كــلــه وفــا مــهٔ كــوه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

بدعتی به په هر در تہکري خوری
لعنتی دغه بشر تہکري خوری
چې سنت ته کوی سپك نظر دُنيا کښې
دَ دُنيا دغه بدتر تہکري خوری
دَ نبی ﷺ په طريقه چې عمل نهٔ کړی
دا بشر به برابر تہکري خوری
دَ قرآن دَ نُور نه لرے چې څوك وُسی
په دُنيا کښې په لر بر تہکري خوری
دَ شيطان سره دَ چا چې ملګرتيا وی
دا بشر په بحرو بر تہکري خوری
د کفارو په تولګی کښې چې کړی ناسته
دوی سحراو مازيګر تہکري خوری
اے احمده! لرے وُسه له شيطانه
ماليدلی په نظر تہکري خوری

## نظم

مؤمن شيطان سره وفا نهٔ کوی
مونځ کښې دَ مونځ نه هغه غلا نه کوی
کار دَ نيکی په دې جهان کښې کوی
غلط کارونه په دُنيا نهٔ کوی

دَ هـــرسـنـــت ســـره ددۀ وی میـــنـــه
دَ بـــدعتیـــانـــو مـــلـــګـــرتیـــا نـــۀ کـوی
رنګ دَ اســلام ئـــي پـــه وجــود بـــانـــديږ وی
کـــارونـــه هــغـــه نـــاروا نـــۀ کـوی
دَ کـــافـــرانـــو ســـره نـــۀ کـــړي وفـــا
کـــار پـــه دُنیـــا کښـــي دَ بـلا نـــۀ کـوی
احــمــده ! میـنـــه دَ نبـــي ﷺ ســره کـړي
دَ خپـــل مـــولـــیٰ ســـره جـفـــا نـــۀ کـوی

## دَ بدعت مذمت

څوك چي دَ بدعت دَ ضلالت پـه اور کښي سَوزی
داسے بشر هر ځائے دَ لعنت پـه اُور کښي سوزی
څـوك چي د بـدعت پـه ګندګی کښي مبتلا دی
داسے خلق هـر ځـائے دَ ذلت په اُور کښي سوزی
څوك چي دَ بدعت نـه نفرت نۀ کړي په دُنیا کښي
دغـه خلق هر ځـائے دَ غفلت پـه اُور کښي سوزی
څـوك چـي دَ بـدعـت او بـدعتـي سـره وفـا کـړي
هرځائے کښي دوی تول دَ ملامت په اُور کښي سوزی
څوك چي پـه سنت او پـه بدعت کښي فرق نۀ کړي
اے احـمده ! دوی دَ هـر ظـلـمت پـه اُور کښي سوزی

★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

تـصـوّر کښـي چـي تـاجـدار ﷺ راسـره نـۀ وي
داسـے ښـکـاري چـي بهـار راسـره نـۀ وي
دَ شیـطـان پـه لار بـه هـلـه زۀ روان شـم
چـي دَ زړۀ سـکـون قـرار راسـره نـۀ وي
دَ نـفـرت سـره دوستـي بـه هـلـه کـومـه
چـي دَ دوجهـان دلـدار راسـره نـۀ وي
دَ نـقـصـان پـه لاربـه هـلـه سـفـر کـومـه
چـي رهبـر خیـر الابـرار ﷺ راسـره نـۀ وي
دَ دوا نـه بـه زۀ هـلـه شـم مـحـرومـه
چـي طبیـب عـالـي غـمـخـوار راسـره نـۀ وي
پـه کـږه لار بـه زۀ هـلـه سـفـر کـومـه
چـي رهبـر دَ نیـغـي لار راسـره نـۀ وي
دَ مـحـشـر پـه ورځ بـه هـلـه فـکـر کـومـه
چـي شـفیـع د دغـي دار راسـره نـۀ وي
دَ مـحـشـر پـه ورځ بـه هـلـه تـږے کیـږم
چـي مـحبـوب دَربَ غـفـار راسـره نـۀ وي
پـه دي هـر څـه بـانـدي څـۀ بـه کـړم احـمـده!
چـي دَ دوجهـان سـردار ﷺ راسـره نـۀ وي

★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ما دي جوړ کړے دَ شعرونو محل
دَ مصطفیٰ ﷺ دَ صفتونو محل
دَ محل هريو ځائے ښائسته ښکلے دے
دا دَ نبي ﷺ دے دَ نعتونو محل
هريو مقام په کښي اعلیٰ اوچت دے
دا دَ مرجان دے دَ لعلونو دَ محل
په دي محل کښي خوشبوئي خورې دی
دا دي قسم دے دَ ګلونو محل
دَ زړه سکون په دے محل کښي پروت دے
دا دَ نبي ﷺ دے دَ يادونو محل
په دي خوشحاله زۀ دُنيا کښي يمه
دا دَ احمد دے دَ خيالونو محل

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

شته دے دَ نبي ﷺ په هر سنت باندي مئين
شته دے دَ نبي ﷺ په شريعت باندي مئين
شته دے په بدعت باندي مئين خلق هم ډير
شته دے دَ ابليس په شرارت باندي مئين
شته دے دَ کفارو مشرکانو يوه ډله
شته دغه مخلوق په ضلالت باندي مئين

شته دے هم نیکان او صالحان ددې جهان
خلق شته دے ډیر په هدایت باندې مئین
اے احمده ! رنګ په رنګ دَ خلقو دی دا ډلې
شته دا سې کسان په نصیحت باندې مئین

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

چا اغوستے چې دَ دین ښائسته لباس دے
خورم قسم چې په دُنیا کښې هغه پاس دے
ښائسته ګڼ کړے چا لباس چې په سنت دے
قدرمند دغه هر فرد دَ جن او ناس دے
چا قرآن او په سنت چې عمل کړے
بهترین دے چې بچ شوے له وسواس دے
یو ائین ددې جهان دَ ټول ژوندون دے
دا قرآن دے چې دَ چا سره په لاس دے
اے احمده ! هر بُنیاد د دین ښائسته دے
دَ قرآن حدیث اجماع سره قیاس دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

طریقه چې دَ سنت درسره نۀ وی
شوې ناکام چې شریعت درسره نۀ وی
هغه وخت به په دُنیا کښې کامیابیږے
چې تیرې دَ شر بدعت درسره نۀ وی

هغه وخت به ناکامي وي ستا نه لرې
چې کارونه دَ ذلت درسره نهٔ وي

ستا مقام به په جنت کښې ښهٔ اعلیٰ وي
بې ریا چې عبادت درسره نهٔ وي

ناکامي به ستا دَ لارې نه کړي تیخته
چې دَ زړهٔ کور کښې نفرت درسره نهٔ وي

دَ شیطان لعین به هرځائے کښې دښمن ئې
چې غصه او بد عادت درسره نهٔ وي

دَ هر چا به په دُنیا باندې دُښمن ئې
چې توښه دَ محبت درسره نهٔ وي

دَ مخلوق سره ستا تعلق نهٔ وي
چې صفت دَ سخاوت درسره نهٔ وي

لوئې مقام به دَ جنت وي ستا نه لرې
دَ قرآن چې تلاوت درسره نهٔ وي

اے احمده! رحمت هله به دا ستا وي
چې کار دلته دَ لعنت درسره نهٔ وي

دَ سنت اهمیت

په هر سنت سره بدعت ختمیږي
په دغې نور سره ظلمت ختمیږي

دغه طاقت دغه رڼا دَ بشر

پـــه دغــي هــریــو حــمــاقــت ختــمیــږي
دغـــــه ســکـــون او اطـــمیـــنـــان دَ بشـــر
پــه دغــي شــر او شیــطـــانــت ختــمیـــږي
دغـــــــه عــــلاج ددي دُنیـــــا دَ بشــــر
دَ هـــریـــو در پــــه دي ذلــــت ختــمیــــږي
دا نـــصیــحـــت دَ هـــر مـؤمـن مسـلــمـــان
پـــه دغــي هــر ځــائــے عـداوت ختــمیــږي
دغـــــه رهبـــر او رهـــنـــمـــا دَ جهـــان
دَ زړهٔ پـــــه دغــــي شــقــــاوت ختــمیــــږي
ســنـــت دي خیـــر تـول ســـراســـر دَ جهـــان
پــه دي احــمـده ! هــر لــعــنــت ختــمیــږي

سنت او بدعت

زهٔ پـــه ســنتــو خپـلـــه تـنـده پــه هـر در ختـمـوُم
دَ خپـل وجـود نـــه دَ بـدعـــت هــریــو اثـر ختـموُم
دَ بـدعتیـانـو نــه نـفـرت پــه هــر یـو در کـوومــه
زهٔ دَ دُنیـا نـــه پـــه دُنیـا کښـي دغـــه شر ختـموُم
کـــارونـــه مـــا بـــانــدي تـول بد دَ بدعتیـانـو لـګـی
زهٔ دَ دُنیـــــا د دي وجـــود نـــــه دا زهـــر ختــمــوُم
دا مشـــغـلـــــه زمـــا دُنیـــا کښـي دَ دُنیــا پـــه در ده
زهٔ دا بـدعـــت دلتـــه ســحــــر او مـــازیـګـر ختـموُم

دا ګـنـدګـی ددې جهـان ده کـۀ پوهيـږې پـه دې
دا ګـنـدګـی بــه ددُنيـا نــه سـراسـر ختـمـوُم
دا اراده ده کـۀ ربَ اُغـوارِي احـمـد عـلـی ستـا
دَ شيـطـانـانـو بـه دَويخ نـه دغـه شر ختمـوُم

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زۀ چــي ستـــا صـفــت تـــه دَ جهـــان ګـــورم
داســـي ده چـــي بـــره زۀ آسـمـــان ګـــورم
بـــره پـــه آسـمـــان کښـــي رڼـــا ستـــوري دي
زۀ چـي ستـا ښـائسـتـۀ ښـائسـتـۀ يـاران ګـورم
بـلـــه پـــه جهـــان کښـــي ډيـوه بـلـــه ده
زۀ چـــي مـديـنـــه کښـــي ستـا مـکـان ګـورم
ښـکـلـی پـــه کښـي ستـا راتــه اخلاق ښکـاري
زۀ چـــي تـــلاوت کـــوُم قـــرآن ګـــورم
ستـا ښـکـلـی صـورت راتــه يـاديـږي پـرے
زۀ چـــي پـــاس قـمـــر بـــره روښـــان ګـــورم
مـــاتـــه ستـــا دَ حُسـن نـظـاره ښـکـــاري
زۀ چـــي کـلـــه ګـل دَ ګـلـستـــان ګـــورم
تـول لـکـــه لـعـلـونــه پــه جهـان کښـي دي
زه چـي ستـا ښـائسـتـۀ ښـکـلـے بيـان ګـورم
تـــا نـــه چـــي زاريـــږي احـمـد وائـــی تـــل

زۀ پـــه دغـي خـلـقـو كښـي خپـل ځـان ګـورم

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

تـــابـــانـدي عـــاشـق هـــريـــو انســـان ويـنـم
ستـــا ميـنـــه كښـــي خـلـق بـنـديـوان ويـنـم
ستــــا ويـــنــــا دا خـــلـــق را يـــو كـــړي دي
تــــاســـره دَ ميــنـــي هـــر بيـــان ويـــنــم
ستـــا پـــه هـــر ادا بـــانـدي مـئـيـن خـلـق
تـــاســـره ښـــائستــــۀ ښـــائستـــۀ يـــاران ويـنـم
ستـــا پـــه هـــر مـحـفـل كښـــي خوشبـودار خلق
تـــا ســـره ګـــلـــونـــه دَ جهـــان ويـــنــم
تـــا ســـره وفـــا حيـــا اليـــدلـــي مـــا
تـــاســـره ښـــائستـــۀ ښـــكـلـے قـرأن ويـنـم
تـــا ســـره ښـــائستـــۀ ښـكـلـى اخـلاق دي هـم
ستـــا صـــفـــت دَ رحـــم مهــريـــان ويـــنـم
زۀ احـــمـــد بـــه ولُـــے ستـــا نـــه زار نشـــم
تـــا ســـره زۀ ميـــنـــه دَ رحـــمـــان ويـــنم

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

وختـــونـــه دَ نبـــى ﷺ دَ مـديـنـي راتـه يـاديــږي
انـوار دَ مـصـطـفـىٰ ﷺ دَ كـور كـوخي راتـه يادـيږي
انـوار دَ كـوركـوخـي دَ مـصطـفـىٰ ﷺ دَ ښكلى ښار

انوار دَ مُرسلانو دَ نبيانو دَ تاجدار ﷺ
قسم دے دَ دي در دا نظاري راته ياديږي
انوار دَ مصطفىٰ ﷺ دَ كور كوځي راته ياديږي
انوار دَ محمد ﷺ ترينه خوارهٔ دي په جهان
انوار دَ محمد ﷺ ترينه خوارهٔ دي عاليشان
قسم دے په دُنيا دغه ذري راته ياديږي
انوار دَ مصطفىٰ ﷺ دَ كور كوځي راته ياديږي
خوشبو سره ترلے هغه خاورهٔ دَ دُنيا
خوشبو سره ترلے هغه خاورهٔ په هر خوا
قسم دے هلته شوي تذكري راته ياديږي
انوار دَ مصطفىٰ ﷺ دَ كور كوځي راته ياديږي
دَ ميني محبت سره ترلے هر بيان
احمد على دُنيا كښي د دي در لري ارمان
جنګلي دَ محمد ﷺ دَ در روضي راته ياديږي
انوار دَ مصطفىٰ ﷺ دَ كور كوځي راته ياديږي

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

ګلونه ښكلي ښكلي دَ رسول ﷺ دي په روضه كښي
ګلونه دَ نبي ﷺ دي دَ نبي ﷺ په باغيچه كښي
صديق ؓ په صداقت ئي هر بشر دلته ګواه دے
په دي خبره هر ځائے هريو در دلته ګواه دے

هر ګل دَ پاك نبی ﷺ دے معطَر په ګلدسته کښې
ګلونه دَ نبی ﷺ دی دَ نبی ﷺ په باغیچه کښې
عدل سره یاد شوے بیا عمرؓ په ټول جهان دے
اسلام دَ پاره نُور دے دَ اسلام دَ پاره شان دے
نبی ﷺ سره یو ځائے دے دَ رسول ﷺ په کُور کوټه کښې
ګلونه دَ نبی ﷺ دی دَ نبی ﷺ په باغیچه کښې
یو ګل ددې ګلونو نه عثمان ابن عفانؓ دے
قسم دے حیاداره ښۀ سخی ددې جهان دے
ښائسته ښکلے دا ګل دے دَ رسول ﷺ په مدینه کښې
ګلونه دَ نبی ﷺ دی دَ نبی ﷺ په باغیچه کښې
یو ګل دے په ګلونو کښې حضرت علی حیدرؓ
قسم دے په دُنیا کښې داسې نشته بهادر
احمدعلی دا ګل دے دَ دُنیا په یو حصه کښې
ګلونه دَ نبی ﷺ دی دَ نبی ﷺ په باغیچه کښې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

په تا سره ښائسته دَ مکې ښار شولو
په تا سره قسم دے خوشبودار شولو
په تا سره ښائسته شو منوَر شولو
قسم دے ډك له نُوره هریو در شولو
په تا سره هر ځائے بهار بهار شولو

په تا سره ښائسته د مکي ښار شولو
په تاسره اُوچت شولو عرب عجم
په تاسره ښائسته شولو دا ټول عالم
په تاسره نادانه هم هوښيار شولو
په تا سره ښائسته د مکي ښار شولو
په تا سره هر لاره معطره شوه
په تا سره بی بی حليمهؓ غوره شوه
په تا سره بي دينه هم ديندار شولو
په تا سره ښائسته د مکي ښار شولو
په تا سره فضا بره ښائسته شوله
احمد وائی ښائسته هريو حصه شوله
په تا سره تائب هر ګناه ګار شولو
په تا سره ښائسته د مکي ښار شولو

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

وايه ښائسته ښکلے مکه ده
دَ پاك الله خانه کعبه ده
بل طرف ته دَ مصطفیٰ ﷺ کلے دے
ښائسته ښائسته هم مدينه ده
په کښي انوار دَ ربّ په در وريږي
په کښي انوار ښۀ برابر وريږي

په کښې انوار هریو سحر وریږي
په کښې انوار هر مازیګر وریږي
دا دَ انواریو چینه ده
وایه ښائسته ښکلې مکه ده
دَ پاك الله خانه کعبه ده
بل طرف ته دَ مصطفیٰ ﷺ کلې دے
ښائسته ښائسته هم مدینه ده
دلته ګلونه دي اصحابؓ دَ نبی ﷺ
ګلونه ټول دي احبابؓ دَ نبی ﷺ
دا دي ګلونه لاجواب دَ نبی ﷺ
دا دي ګلونه دَ ګلاب دَ نبی ﷺ
دا دَ ګلونو ګلدسته ده
وایه ښائسته ښکلې مکه ده
دَ پاك الله خانه کعبه ده
بل طرف ته دَ مصطفیٰ ﷺ کلې دے
ښائسته ښائسته هم مدینه ده
دلته پراته دي رحمتونه دَ ربّ
دلته پراته دي برکتونه دَ ربّ
دلته پراته دي نعمتونه دَ ربّ
دلته پراته دي چمنونه دَ ربّ

دا قيمتی په هر حصه ده

وايه ښائستۀ ښکلے مکه ده

دَ پاك الله خانه کعبه ده

بل طرف ته دَ مصطفیٰ ﷺ کلے دے

ښائسته ښائسته هم مدينه ده

دَ حِرا غار دلته عالی مقام دے

دَ ثور دَ غار دَلته کښي احترام دے

زمزم کښي خير دلته دَ خاص او عام دے

خپور شوے دلته نه مذهب اسلام دے

واورۀ په کښي مزدلفه ده

وايه ښائستۀ ښکلے مکه ده

دَ پاك الله خانه کعبه ده

بل طرف ته دَ مصطفیٰ ﷺ کلے دے

ښائسته ښائسته هم مدينه ده

غنډۍ صفا او دَ مروۍ دی په کښي

دا نخښانې دَ ربّ مولیٰ دی په کښي

نعرې دَ ذکر دَ مولیٰ دی په کښي

احمده ! راشه دلته دا دی په کښي

دَ آخرت يوه توښه ده

وايه ښائستۀ ښکلے مکه ده

دَ پــــاك الـــلّـــه خـــانـــه كـعـبـــه ده
بـــل طـــرف تـــه دَ مـصـطـفـىٰ ﷺ كـلـے دے
ښـــائـسـتـــه ښـــائـسـتـــه هـــم مـديـنـــه ده

## قران كريم

(قران كريم ته دَ حضور ﷺ اخلاق وئيلے شي)

څـوك چـې پـه مـيـنـه محبت سره قران اُولـولـی
هـغـه كـلام بـه دَ مـولـىٰ غـنـی سبـحـان اُولـولـی
دغـه لـوسـتـلـے محـمـد خيـر البشـر نبی ﷺ دے
دغـه لوسـتـلـے هـم صـديـقؓ عـمـرؓ عثمانؓ علیؓ دے
دغـه كـلام چـې څـوك پـه مـيـنـه دَ جهان اُولـولـی
هـغـه كـلام بـه دَ مـولـىٰ غـنـی سبـحـان اُولـولـی
دا نـــازل شـوے هـدايـت لـه هـر بشـر دَ پـاره
دا نـــازل شـوے سـعـادت لـه هـر بشـر دَ پـاره
څـوك چـې پـه مـيـنـه دا كلام ښـۀ عاليشان اُولـولـی
هـغـه كـلام بـه دَ مـولـىٰ غـنـی سبـحـان اُولـولـی
دا نـــازل شـوے لـه اسـمـانـه نُـور رنـا دَ پـاره
دا نـــازل شـوے لـه رحـمـانـه نُـور رنـا دَ پـاره
دغـه كـلام چـې دلتـه پټ اوڅـوك عيـان اُولـولـی
هـغـه كـلام بـه دَ مـولـىٰ غـنـی سبـحـان اُولـولـی
دا نـــازل شـوے دَ نبيـانـو پـه افسر ﷺ بـانـدې دے

دا نازل شوے محمد خیر البشر ﷺ باندې دے
دغه کلام چې په دُنیا کښې يو انسان اولولي
هغه کلام به دَ مولیٰ غني سبحان اُولولي
هريو عزت په دې کښې پټ دے هر بشر دَ پاره
احمده ! پټ په کښې رحمت دے هريو در دَ پاره
کله چې دلته دا کلام يو مسلمان اُولولي
هغه کلام به دَ مولیٰ غني سبحان اُولولي

سنت او بدعت

دَ بدعت نه اے انسانه ځان کړه بچ
په دُنيا کښې دا ختنه ناداان کړه بچ
په سنت دَ محمد ﷺ پسې روان شه
دَ شیطان نه دغه خپل ایمان کړه بچ
اطاعت دَ محمد ﷺ کوه دُنيا کښې
ځان دُنیا کښې دَ ابلیس شیطان کړه بچ
خاکساري او عاجزي ډیر لوئې دولت دے
ځان کړه ځان کړه له غرور په جهان بچ
نوراني ده طريقه دَ محمد ﷺ
ځان تورتم نه دَ ابلیس هامان کړه بچ
هدايت دَ محمد ﷺ دَ در نه واخله
ځان له هر قسمه دَ شر بيان کړه بچ

هــريــو خيــر دَ پــاك اللّـــه كــلام كښــې پــروت دے
خپــل وجــود دَ هـــريــو شــر ســامـــان كــړه بــچ
اے احــمـــده ! بـــې ديــنـــى خـــو يـــو خـــزان دے
خــدائــې دے هـــرځــائـے دَ هــرشــر خـزان كــړه بــچ

نعتِ مصطفىٰ ﷺ

دَ مُـــرســـلانـــو دَ ســـردار ﷺ كـــلـــے دے
زمـــونـــږ دَ سيَـــدالابـــرار ﷺ كـــلـــے دے
ګـــران پـــه حــضــرت خيــر الابــرار ﷺ دے دغـــه
ګـــران دَ نبيـــانــو پـــه ســـردار ﷺ دے دغـــه
قســم دے ډك لـــه نُـــور انـــوار دے دغـــه
قســم دے ښـــكـــلـــے خـــوشبـــودار دے دغـــه
پـــه ټــول وجــود ټــول خـــوشبـــودار كـــلـــے دے
زمـــونـــږ دَ سيَـــدالابـــرار ﷺ كـــلـــے دے
خـــوښ دَ صـــديـــقؓ او دَ عـــمـــرؓ دے دغـــه
خـــوښ دَ عثـــمـــانؓ او دَ حيـــدرؓ دے دغـــه
خـــوښ دَ ســـلـــمـــانؓ دَ ابـــوذرؓ دے دغـــه
خـــوښ دَ حـــضـــرت ســـعـــدؓ جـــابـــرؓ دے دغـــه
دَ زړهٔ دُنيـــا كښـــې دَ قـــرار كـــلـــے دے
زمـــونـــږ دَ سيَـــدالابـــرار ﷺ كـــلـــے دے
خـــوښ دَ مـــؤمـــن او مســـلـــمـــان دے دغـــه

خوش هر ساعت دَ هر انسان دے دغه
خوش دَ هر چا په هر مکان دے دغه
خوش دَ احمد دَ تول مردان دے دغه
داسي دُنيا کښي دَ بهار کلے دے
زمونږ دَ سيد الابرار ﷺ کلے دے

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ هر چا يار نه زما يار ښکلے دے
يار دَ مولیٰ په هر ګفتار ښکلے دے
په والضُّحیٰ سره ئې ذکر شوے
بدر الدّجیٰ سره ئې ذکر شوے
دَ هر رخسار نه ئې رُخسار ښکلے دے
دَ هر چا يار نه زما يار ښکلے دے
زلفې ئې يادې په بُښلا سره دی
دا په وَالَّيْلِ اِذَا يَغْشٰی سره دی
دَ زلفو ذکر ئې بار بار ښکلے دے
دَ هر چا يار نه زما يار ښکلے دے
طٰهٰ يٰسين سره ياديږی هغه
صادق امين سره ياديږی هغه
دَ هر ګفتار سره ئې کار ښکلے دے
دَ هر چا يار نه زما يار ښکلے دے

دَ مزمل او مدثر په لقب
يادوي دغه شان ئې دلته عرب
احمده ! ذكر ئې دَ ښار ښكلے دے
دَ هر چا يار نه زما يار ښكلے دے

نعتِ مصطفىٰ ﷺ

نخښه دَ ايمان ده مدني ﷺ سره تل مينه
نخښه دَ ايمان ده هر ولي سره تل مينه
دغه شان فلاح او سعادت دَ پاره هر ځائے
دلته په هر خوا كړه قريشي ﷺ سره تل مينه
مينه دَ سنت سره دُنيا كښې دَ بشر
دا دَ هر انسان ده دَ مكي ﷺ سره تل مينه
بُغض او حسد چې دَ بدعت سره ساتي څوك
دا په ټول جهان ده عربي ﷺ سره تل مينه
كار او طريقه كښې دَ نبي ﷺ تل اطاعت
دا دَ هر انسان ده خپل نبي ﷺ سره تل مينه
غواړه چې رضا دَ خپل نبي ﷺ په هره لار
دا ده په دُنيا كښې هاشمي ﷺ سره تل مينه
مينه دَ نبي ﷺ دَ نبي ﷺ كور نه ملاويږي
وكړه دَ نبي ﷺ هر يو نوسي سره تل مينه
مينه كۀ احمده ! دَ نبي ﷺ په جهان غواړے

وسـاتـه پـه زړۀ کښـې صـحـابیؓ سره تل مینـه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

خــوشبــو زمــونــږ طرف تــه مـدينې نــه ده راغـلې
خـوشبـو دَ مـصـطفیٰ ﷺ ښکلے روضے نه ده راغلې
خــوشبــو کــړه خـوشبـوداره زمـونـږ كـور كـلـے وطـن
د دغــې خــوشبــو کــړۀ خـوشبـوداره هـر چـمـن
قسـم دے دَ رسـول اللّٰـه ﷺ کـوڅې نـه ده راغـلې
خــوشبــو زمــونــږ طرف تــه مـدينې نــه ده راغـلې
خــوشبــو کــړۀ خـوشبـوداره پـه دُنيـا کښې هـر بشـر
قســم دے دا خـــوشبــو ده دَ کــونيــنـو دَ افســر ﷺ
قســم دے د دې در دَ هـــر ذرې نــــه ده راغـــلـــې
خــوشبــو کــړه خــوشبـوداره پـه دُنيـا کښې هـره لار
قســم دے دا خـــوشبـو ده دَ کـونيــنـو دَ ســردار ﷺ
خــوشبــو دَ مـدينــې د هـر حصـې نــه ده راغـلـې
خــوشبــو زمــونــږ طرف تــه مـدينې نــه ده راغـلې
قسـم دے خـوشبـودار پـه دې خـوشبـو شـو هـر لحد
تــعــريف دَ مـصـطفیٰ ﷺ دے بيان کـړے دا احـمـد
خــوشبــو دَ مـديـنــې دَ بــاغـيـچې نــه ده راغـلـې
خــوشبــو زمــونــږ طرف تــه مـدينې نــه ده راغـلې

★★★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

شمه لتانه سپیلنې جانانه ﷺ
تانه قربان تانه لوګې جانانه ﷺ
هره لمحه دا تمنا ده زما
دغه دَربَ نه یو دُعا ده زما
کومه تل ستا تذکري جانانه ﷺ
تانه قربان تانه لوګې جانانه ﷺ
دا تمنا په هر مقام ده زما
دا تمنا سحر ماښام ده زما
ستا په هر یاد شُمه زلمې جانانه ﷺ
تانه قربان تانه لوګې جانانه ﷺ
دا تمنا دَ زړۀ آواز لرمه
دا په آخر او په آغاز لرمه
په تا ښائستهٔ دي ګلدستي جانانه ﷺ
تانه قربان تانه لوګې جانانه ﷺ
دا تمنا ده دَاحمد علی نن
دا تمنا ئي لري دلته بدن
ستا د دي یاد نه نۀ وتې جانانه ﷺ
تانه قربان تانه لوګې جانانه ﷺ

*******

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مشك وعنبر دی ستا خولې جانانه ﷺ
دَ مدینې منورې جانانه ﷺ
لعل وګوهر لرې غابښونه نبی ﷺ
ښائسته دی تول ستا صفتونه نبی ﷺ
اے دَ ښائسته ښکلې روضې جانانه ﷺ
دَ مدینې منورې جانانه ﷺ
ښکلې رُخسار ستا لاثانی دَ بدن
دا سخاوت دے ستا دَ تن دَ لمن
یاد دَ دُنیا په هر حصې جانانه ﷺ
دَ مدینې منورې جانانه ﷺ
زلفې وَالّیل ستا دَ بدن ښکلی دی
دغه قسم دے له هر تن ښکلی دی
داسې دی هر ځائے تذکرې جانانه ﷺ
دَ مدینې منورې جانانه ﷺ
په انسانانو کښې بهتر غوره ئې
وائی احمد خیر البشر ﷺ غوره ئې
نه درته رسی فرښتې جانانه ﷺ
دَ مدینې منورې جانانه ﷺ

★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

پــه ربَ پســے دُنیــا کښې بیـا مقام دَ نبی ﷺ دے
ښائسته ښکلے دُنیا کښې هر کلام دَ نبي ﷺ دے
ښائسته ښکلے کلام دَ مصطفیٰ خیر البشر ﷺ دے
ښائسته ښکلے کلام دَ امامانو دَ افسر ﷺ دے
ښائسته ښکلے دُنیا کښې هر پیغام دَ نبي ﷺ دے
پــه ربَ پســے دُنیــا کښې بیـا مقام دَ نبی ﷺ دے
ښائسته ښکلے مذهب دَ مُرسلانو د امام ﷺ دے
یاد شوے دا مذهب په ټول جهان کښې په اسلام دے
ښائسته په ټول جهان کښې دین اسلام دَ نبي ﷺ دے
پــه ربَ پســے دُنیــا کښې بیـا مقام دَ نبی ﷺ دے
افـعــال ئــي پــه دُنیــا دی دَ دُنیــا دَ درانــوار
اقــوال ئــي پــه دُنیــا دی دَ دُنیــا دَ درانــوار
صـورت پــه دي جهــان مـاهِ تمـام دَ نبـی ﷺ دے
پــه ربَ پســے دُنیــا کښې بیـا مقام دَ نبی ﷺ دے
سیــرت ئــي نـورانــی دے داسي وائـی هــر بشـر
صــورت ئــي نــورانــی دے احــمــد وائـی بــرابــر
ښائسته هــریـو سحر هریو ماښام دَ نبي ﷺ دے
پــه ربَ پســے دُنیــا کښې بیـا مقام دَ نبی ﷺ دے

★★★★★★

## نصيحت

ونـــــهٔ تـــړے ځــــان چـــي پـــه بـدعــت پسے
ځـــــان وتـــړه هـــر ځــــائے کښـــي سـنــت پسے
لــــړے دَلــعــنـت نــــه خپـــل وجـــود ســـاتـــه
ځــــان وتـــړه هـــر ځـــائے کښـــي رحـمـت پسے
ونــــــهٔ مـــنـــے هـيــڅ کـــلــــه دَيـــو کــــافـــر
شــــه کـــامــل روان شــــهٔ شـــريــعــت پسے
کــــــار دَ هـــــر عـــــزت دَ دوجهــــــان کـــوه
ونــــهٔ تـــړے ځـــان چـــي پــــه ذلـــت پسے
زړونــــــه دَ دُنيــــــا ورســــــره يــــو چــــي شــــي
دغـــــــه اثــــر شتـــــــه دے مـــحبــت پسے
خــوك چـــي دَ حســدنــــه ځــان اُوزګـــار نــکـــړي
هــغـــــه ســـړے ګــرځـــي پـــه نـفــرت پسے
هـــغـــــه پـــــه دُنيــــا نــصيــحــت اُومـــومـــي
ګــــرځـــي يـــو بشـــر چـــي نــصيـحــت پسے
ربَ مـــــقـــــــرر کـــــړي جــــنتـــونـــــــه دي
دغـــــــه اجــــر شتـــــــه پـــــه تـــلاوت پسے
کــلــــــه يـــو نــعــمــت چـــي درلـــــه ربَ درکـــړي
شـــکــــر لازمـــــي دے پــــــه نـعــمــت پسے
هيــــــره درنـــــــه نشــــــي دَ احـــمــد ويــنـــــا

مـــهٔ ګـــرځـــه انســـانـــه شـرارت پسـے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نـــهٔ ځـــی چـــې نبـــی اٰخـــرزمـــان ﷺ پســـے
داسـے انســـان ګـــرځـــی پـــه شیـطـــان پسـے
څـــوك چـــې دَ ســـنـــت ســـره وفـــا نـــهٔ كـــړي
دهٔ كـــېږه تـــړلـــے ده تـــاوان پســـے
څـــوك چـــې دَ بـدعـــت پـــه لارو كـــنـدو ځـــی
دغـــه ده خـــنـــدا پـــه دې قـــراٰن پســـے
څـوك چـــې دَ بـدعـــت دلتـــه پـه سـر كـړي ګـنـد
دا انســـان روان دے پـــه نـــقـــصـــان پسـے
څـــوك چـــې دبـدعـــت تـورو تیـرو كښـې ځـــی
نـــهٔ ځـــی دا بشـــر نبـــی ســـلـــطـــان ﷺ پسـے
څـــوك چـــې مبتـــدع تـــه مـــقـتـــدا وائـــی
دا بشـــــر روان دے بـــې ایـــمـــان پســـے
هـــریـــو مبتـــدع ګـــنـــه دښـــمـــن دَ دیـــن
كـــار ئـــې دَ خـــنـــدا دے پـــه ایـمـــان پسـے
هـــریـدعـــت زیـــات والـــے پـــه اسلام كښـې دے
دغـــه مســـخـــره ده پـــه رحـــمـــان پسـے
دغـــه بـــې دیـــنـــی ده دَ اســـلام پـــه نـــوم
دغـــه دی خبـــرې حـــق بیـــان پســـے

څوك چې په سنت کښې مزه بیا مومې
داسې ده چې نُور تري په ځان پسې
څوك چې دَ سنت څهره په غاړه کړي
دا بشر روان دے نُور عرفان پسې
اے احمده! حق وینا کوه ورته
مهٔ ګرځه بدعت پسې تاوان پسې

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

راځی چې وکړو دَ نبیانو دَ سردار ﷺ تذکره
راځی چې وکړو په دُنیا دغه باربار تذکره
راځی چې وکړو دَ خاتم الانبیاء ﷺ ذکر
راځی چې وکړو په دُنیا دَ مصطفیٰ ﷺ ذکر
راځی چې وکړو دَ نیکانو دَ دلدار ﷺ تذکره
راځی چې وکړو په دُنیا دغه باربار تذکره
راځی چې وکړو دَ صادق او دَ امین صفت
راځی چې وکړو دَ طٰهٰ او دَ یٰسین صفت
په جمع وکړو چې راځی دَ تاجدار ﷺ تذکره
راځی چې وکړو په دُنیا دغه باربار تذکره
راځی چې وکړو دَ حامد او دَ محمود ذکر
راځی چې وکړو دَ قاصد او دَ مقصود ذکر
راځی چې وکړو دَ حضرت خیر الابرار ﷺ تذکره

راځــی چـې وکـړو پــه دُنیـا دغــه بـار بـار تذکـره
راځــی چـې وکـړو دَرسـول ﷺ دَ حـق يـارانو ذکر
راځــی چــې وكــړو دَرسـول ﷺ دَعـاشـقـانو ذکـر
راځـــی چـــې وکـــړو دَرسـول دَ در دربـــار تــذکــره
راځــی چــې وکـړو پــه دُنیـا دغــه بـار بـار تذکـره
راځــی چــې وکــړو دَرسـول ﷺ دَ نُور سـنـت ذكـر
وكــړو احـمـده ! چــې دا دلـتـــه هــر ســاعـت ذكـر
پــه جـمـع وكـړه چـې دَ پاك نبی ﷺ دَ بشار تـذكره
راځــی چــې وکـړو پــه دُنیـا دغــه بـار بـار تذکـره

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ګـلـونــه دَ نبــی ﷺ دی کــۀ بـاغـونــه دَ نبــی ﷺ
ښـائستـه ښـکـلـی دُنیـا کښـې دی لعلونـه دَ نبی ﷺ
ښائستۀ ښکلے دُنیا کښې هر صفت دَ محمد ﷺ دے
ښائستۀ ښکلے دُنیا کښې تول سیرت دَ محمد ﷺ دے
ښـائستـۀ ښـکـلـی دُنیا کښـې دی یـادونـه دَ نبـی ﷺ
ګـلـونــه دَ نبــی ﷺ دی کــۀ بـاغـونــه دَ نبــی ﷺ
ښـائسـتـۀ ښـکـلـے دُنیـا کښې هر ادا دَ محمد ﷺ ده
ښـائسـتـۀ ښـکـلـے دُنیـاکښـې نُور رڼا دَ محمد ﷺ ده
ښـائستــه دی پــه دُنیا کښې حدیثـونـه دَ نبـی ﷺ
ګـلـونــه دَ نبــی ﷺ دی کــۀ بـاغـونــه دَ نبــی ﷺ

ښائسته ښکلے دُنیا کښې هر مکان دَ محمد ﷺ دے
ښائسته ښکلے دُنیا کښې دا قرآن دَ محمد ﷺ دے
ښائسته ښکلی دُنیا کښې دی کارونه دَ نبی ﷺ
ګلونه دَ نبی ﷺ دی که باغونه دَ نبی ﷺ
ښائسته ښکلے دُنیا کښې هر یو یار دَ محمد ﷺ دے
احمده ښه ښائسته ښکلے مزار دَ محمد ﷺ دے
ښائسته دی خوشبوداره عادتونه دَ نبی ﷺ
ګلونه دَ نبی ﷺ دی که باغونه دَ نبی ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

خوارۀ په هر طرف دی برکتونه دَ نبی ﷺ
وریږی په دُنیا کښې رحمتونه دَ نبی ﷺ
هر چا لره رحمت دے محمد خیر البشر ﷺ
هر چا لره رحمت دے دَ نبیانو دا افسر ﷺ
یاران دَ مصطفیٰ ﷺ دی ټول ګلونه دَ نبی ﷺ
وریږی په دُنیا کښې رحمتونه دَ نبی ﷺ
هر یار دَ محمد ﷺ دے دَ هر در دَ پاره خیر
هر یار دَ محمد ﷺ دے هر بشر دَ پاره خیر
قسم دے په دُنیا دی دا لعلونه دَ نبی ﷺ
وریږی په دُنیا کښې رحمتونه دَ نبی ﷺ
دُوی ستوری دَ اسمان دی دا لره عقیده

دُوی ستوري دَ جهان دي دا لـرمـه عقیده
ښائسته دي دَ دُنیا تـول چمنونه دَ نبي ﷺ
وریږی په دُنیا کښي رحمتونه دَ نبي ﷺ
هر در په دُوی ښائسته دے احمد وائی دَ جهان
اصحابؓ دَ محمد ﷺ دي قدرمنده عالیشان
دَ خیر نه ډك دي دغه نعتونه دَ نبي ﷺ
وریږی په دُنیا کښي رحمتونه دَ نبي ﷺ

دَ بدعت مذمت او دَ سنت اهمیت

بدعت به دَ دُنیا تا په محشر کښي ژړوی
دا ګند به دلته تا په لر او بر کښي ژړوی
سنت نه چي کړے تېښته دَ نبي خیر البشر ﷺ
سنت نه چي کړے تېښته دَ نبیانو دَ افسر ﷺ
دا کار به تا هر ځائے په هر سفر کښي ژړوی
بدعت به دَ دُنیا تا په محشر کښي ژړوی
سنت ته چي تۀ دلته دَ نفرت په نظر ګورے
سنت ته چي تۀ دلته ذلت په نظر په ګورے
دا کار به دلته تا په هر دفتر کښي ژړوی
بدعت به دَ دُنیا تا په محشر کښي ژړوی
سنت ته چي سپك ګورے په دُنیا کښي په یو در
سنت ته چي سپك ګورے دَ دُنیا په لر او بر

دا كار به تا هر ځائے په هر بستر كښي ژړوي
بدعت به دَ دُنيا تا په محشر كښي ژړوي
سنت سره چي مينه دَ نبی ﷺ نه كوے دلته
سنت سره چي مينه ابدی نه كوے دلته
احمد وائی دا كار به تا تېر كښي ژړوي
بدعت به دَ دُنيا تا په محشر كښي ژړوي

دَ بدعت مذمت

انجام دَ شرارت هر يو انسان ژړوي
بدعت به په محشر كښي بدعتيان ژړوي
كارونه دَ شيطان دَ شيطانت چي كوی څوك
كارونه دَ نقصان دَ شرارت چي كوی څوك
محشر كښي دا عمل به مشركان ژړوي
بدعت به په محشر كښي بدعتيان ژړوي
نفرت ئي دَ سنت نه چي وی كړے په دُنيا كښي
نفرت ئي شريعت نه چي وی كړے په دُنيا كښي
دا كار به په محشر هر بي ايمان ژړوي
بدعت به په محشر كښي بدعتيان ژړوي
رنړا نه دَ سنت چي لرے تښتے په دُنيا كښي
نفرت ساتی په زړهٔ كښي چي سنت سره هرخوا كښي
محشر كښي به مولیٰ دا شيطانان ژړوي

بدعت به په محشر کښې بدعتیان ژړوی

دَ خیر نه لرې تښتی چې احمده ! په جهان

دا کار دې په دُنیا کښې دَ دُنیا دَ هر شیطان

مولیٰ به په محشر دا ظالمان ژړوی

بدعت به په محشر کښې بدعتیان ژړوی

★★★★★★★★★

تمت بحمد الله تعالیٰ وبعونه وصلی الله تعالیٰ علی

خیر خلقه محمد وآله واصحابه اجمعین . امین

## بسم الله الرحمٰن الرحیم

## حمد باري تعالیٰ

یو دے یو په وجود ذات زمونږه ربَ
نور لري تمام صفات زمونږه ربَ
په رحمان او په رحیم سره یادیږي
یاد قدیر دے په جهات زمونږه ربَ
عرش کرسي بره دا هر یو لوئي آسمان
پیدا کړے کائنات زمونږه ربَ
په صفت سره چي یاد دے په خبیر
خبردار دے دَ حالات زمونږه ربَ
هر یو څیز له ورکوی رزق دُنیا کښي
دے رازق دَ مخلوقات زمونږه ربَ
دَهر څۀ په دي جهان هغه مالك دے
پیدا کړي معجزات زمونږه ربَ
په دُنیا کښي ئي ولیانو ته ورکړي
دغه لوئي لوئي کرامات زمونږه ربَ
دَ هر چا پوره کوی چي حاجتونه
دا قاضي دے دَ حاجات زمونږه ربَ
هر یو شاه ئي دَ دُنیا د در غلام دے
ختموُی ټول مشکلات زمونږه ربَ

په کافراو مسلمان دے مهربانه
پيدا کړي علامات زمونږه ربَ
ګناهونه په جهان ئي پيدا کړي
پيدا کړي حسنات زمونږه ربَ
دغه بوټي دغه لوئي لوئي ځنګلونه
پيدا کړي نباتات زمونږه ربَ
په صحرا کښي هر ذرّه او دغه غرونه
پيدا کړي جمادات زمونږه ربَ
ورته ولے به احمد زۀ سجده نۀ کړم
دے لائق دَ عبادات زمونږه ربَ

حمد باري تعالیٰ

پکښي توحيد دے دَ توحيد خوږه وينا ده
دغه کلمه دَ لَآاِلٰهَ اِلَّا اللّٰه ده
دغه بنيادَ دَ هر ايمان دے
دغه بُنيا د دَ ټول جهان دے
دغي کلمي سره باقي ټوله دُنيا ده
دغه کلمه دَ لَآاِلٰهَ اِلَّا اللّٰه ده
داسي تعليم د دي قرآن دے
ټول په دُنيا کښي حق بيان دے
مونږ ته ښودلے محمد رسول اللّٰه ﷺ ده

دغه کلمه دَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه ده

وئیلي دا هر یو نبی ده

وئیلي دا هر یو ولی ده

ښائسته ښائسته ورسره بره دا فضا ده

دغه کلمه دَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه ده

ټول محبت ټول عبادت دے

احمده ! پروت پکښې جنت دے

تل په ذکرونو کښې دَ ټولو نه اعلیٰ ده

دغه کلمه دَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه ده

حمد باري تعالیٰ

رڼائي تلے چي دُنیا کښې په هرخوا ده

حقه کلمه دَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه ده

دغه وئیلے هم اٰدم ده

په دي دُنیا هر محترم ده

ښهٔ قدرمنده عزتمنده ده اعلیٰ ده

حقه کلمه دَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه ده

ورسره زړونه صفا کیږی

لکه دَ ستورو رڼا کیږی

دغه ښودلے مونږ ته ټولو اولیاء ده

حقه کلمه دَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه ده

تـــــل دے دا ذکـــــــر دَ مـــــــابشـــــام
دَ هـــــــر ســـــحــــر دلتـــــــــه مـــدام
تـــل کـــــامیــــابــي لــــه ابتــدا او انتهـــا ده
حـــقـــــه کــلــمــــــه دَ لَآاِلَــــهَ اِلَّا الــلّـــــه ده
تـــــل دا صـــــدیـــقؓ عـــمــــرؓ وئیــــلـــــے
عثـــمـــــانؓ، عـــلـــــی حیـــدرؓ وئیـــلـــــے
دا پـــه دُنیـــا کښي تـل کـامـلـه حـق ویـنـا ده
حـــقـــــه کــلــمــــــه دَ لَآاِلَــــهَ اِلَّا الــلّـــــه ده
دا پــــه ســـختـــو کښـــي پـــکـــاریـــږی
کـــار دُنیـــا پـــري آســـانیـــږی
دَ هـــــر رنـــځـــور ســـړی دَ پــــاره تـــل دوا ده
حـــقـــــه کــلــمــــــه دَ لَآاِلَــــهَ اِلَّا الــلّـــــه ده
پـــکښـــي پیـــغــــام دے دَ تـــوحیـــد
پیـــغـــــام تـــمـــــــام دے دَ تـــوحیـــد
رڼـــارڼـــا پــــه دي دُنیـــا زمـــا او ستـــا ده
حـــقـــــه کــلــمــــــه دَ لَآاِلَــــهَ اِلَّا الــلّـــــه ده
داســــي تـــــل وائـــــی مســـلـــمــــــان
وائـــــی احــــمــــد هـــم دَ مـــــردان
پـــه هـــر صــفـت ســره دُنیـــا کښـي تـل جُـدا ده
حـــقـــــه کــلــمــــــه دَ لَآاِلَــــهَ اِلَّا الــلّـــــه ده

## حمد باري تعالیٰ

راشـــي مــلــګــرو دنُیــا حــقــه ویــنــا ده
کــلــمــه، کــلــمــه، دَلَا اِلٰــهَ اِلَّا اللّٰــه ده
دغــــه نیــکــي ددې جهــان ده
دغــه عــالــی ده عــالیشــان ده
تــوښــه مــلــګــرو پــه دُنیــا کښې دَعــقبیٰ ده
کــلــمــه، کــلــمــه، دَلَا اِلٰــهَ اِلَّا اللّٰــه ده
ورســره ښــکــې هــریــو کــورروی
ورســره ښــکــلــې هــریــو لــوروی
تــل خــوشبــوئــي پــه دې دُنیــا دَدې هــوا ده
کــلــمــه، کــلــمــه، دَلَا اِلٰــهَ اِلَّا اللّٰــه ده
دا دې دَزړونــو تــل تــکــور
دا حــفــاظــت دې دَ هــراوُر
دغــه فــائــده ئــي نــقــل کــړې عــلــمــاء ده
کــلــمــه، کــلــمــه، دَلَا اِلٰــهَ اِلَّا اللّٰــه ده
دَجهــنــم نــه تــل امــان دې
ورلــه یــو ډهــال ددې جهــان دې
خــوښــه هــرځــائــې کښــې پــه دُنیــا دَاولیــاء ده
کــلــمــه، کــلــمــه، دَلَا اِلٰــهَ اِلَّا اللّٰــه ده
دا نــعــمــتــونــه دَجــنــت دي

دا رحمتونه هر ساعت دي

وينا احمده! چي دا تيره شوه صفا ده

كلمه، كلمه، دَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه ده

حمد باري تعالىٰ

خبردار چي دَ دُنيا دَ كُل عالَم دے

هغه ربَ راته خبر په هر قدم دے

خبردار زما اوستانه په جهان دے

په مونږ تولو باندي هغه مهربان دے

ورته ښكاري هغه غر دے او كۀ سم دے

هغه ربَ راته خبر په هر قدم دے

دَ هر كور نه ښۀ خبر دے هر ساعت

دَ هر څۀ ورته معلوم دے حقيقت

كۀ عرب دے دَ دُنيا او كۀ عجم دے

هغه ربَ راته خبر په هر قدم دے

په هر څۀ باندي نظر ساتي دُنيا كښي

ورته ښكاري هريو څيز بره فضا كښي

دا عالَم ئې پيدا كړے په يو دم دے

هغه ربَ راته خبر په هر قدم دے

دَ اسمان دَ مخلوقاتو نه خبر دے

په ذره ذره ئې دلته كښي نظر دے

خبردار دَ هر یو څیز نه دَ تورتم دے

هغه ربّ رانه خبر په هر قدم دے

اے احمده! ښه کامله په صفات دے

لَاشَرِیْکَه په دُنیا کښې دغه ذات دے

پیدا کړے ئې دَ لوح سره قلم دے

هغه ربّ رانه خبر په هر قدم دے

## حمد باري تعالىٰ

ربّه! ستا فضل واحسان دے او کرم دے

پیدا کړے چې تا مونږ له دا عالَم دے

پیدا کړي مونږ له تا دي دغه غرونه

پیدا کړي مونږ له تا دي دا باغونه

پیدا کړے تا انسان ښهٔ محترم دے

ربّه! ستا فضل واحسان دے او کرم دے

مونږ له تا دے پیدا کړے هر آسمان

مونږ له تا دے پیدا کړے ټول جهان

پیدا کړے تا عرب سره عجم دے

ربّه! ستا فضل واحسان دے او کرم دے

پیدا کړي تا رڼا دي بره ستوري

په آسمان کښې په هر خوا دي بره ستوري

پیدا کړے تا هر نور دَ هر تورتم دے

رټـــه! ستــا فــضـل واحســان دے او کــرم دے
پيــدا کـــړے مـونــږ لـــه تــا دغـــه هــواده
پيــدا کـــړے مـونــږ لـــه تــا دغـــه فـضــاده
پيــدا کـــړے تــا عـــلاج دَ هـــريــو غـم دے
رټـــه! ستــا فــضـل واحســان دے او کــرم دے
تــا راکـــړے مـونــږ لـــه رټـــه! نُـور کتـاب دے
دَ احـــمـــد عـــلـــي دَ پـــاره نــورُ أفتـــاب دے
عــزتــمــنــده پـــه دُنيـا کښـي چـي هـردم دے
رټـــه! ستــا فــضـل واحســان دے او کــرم دے

## حمد باري تعالیٰ

چـــي اگـــاه دے مـنـتـظـم دَ ټـول عـــالـم دے
رب دَ ټـــول عـــرب دے رب دَ ټـــول عـــجـم دے
دَ هـــرچـــا روزي رســـان دے دَ جهـــان
پيــدا کـــړے ئـي ده زمـکـــه هـم أسـمـان
پيــدا کـــړے ئـي دَ عـــرش ســـره قـلـم دے
رب دَ ټـــول عـــرب دے رب دَ ټـــول عـــجـم دے
نـــه مـــحتـــاج دے دَ وزيـــر او دَ مُشيـــر
غـــواړه تـــل تـــريـــنـــه غـــريـــب ســـره امـيـــر
خپـــور ئـــي دلتـــه پـــه دُنيـا کښـــي دا کـــرم دے
رب دَ ټـــول عـــرب دے رب دَ ټـــول عـــجـم دے

پکاريږي دَ دُنيا په مصيبت کښې
پکاريږي چې هرخوا هريو ساعت کښې
مددګار دَ هر انسان په هر قدم دے
ربّ دَ ټول عرب دے ربّ دَ ټول عجم دے
نمر کښې نور ئې دَ جهان دے پيدا کړے
څوك کافر څوك مسلمان دے پيدا کړے
پيدا کړے ئې رڼا سره تورتم دے
ربّ دَ ټول عرب دے ربّ دَ ټول عجم دے

## حمد باری تعالیٰ

الله معبود منمه
الله مسجود منمه
نۀ ئې والد منى څوك
نۀ ئې مولود منمه
واحد، احد، صمد
دَربّ وُجود منمه
ټول ئې تعريف چې کوی
هغه محمود منمه
په هر صفت جدا دے
هغه ودود منمه
احمد ليکلے دغه

بیان موجود منه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نبی ﷺ محمود منه
خیرئي وجود منه
دوست دَ دُنیا دَ خلقو
دوست دَ ودود منه
هغه احمد منه
حامد محمود منه
قاصد دَ ربَ هغه دے
هغه مقصود منه
رهبر رنیا دَ جهان
هغه مسعود منه
انکار کافر ترے کوی
سلام درود منه
دَ مدیني روضه کښي
هغوی موجود منه
احمده! هغه نبی ﷺ
والد مولود منه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مکه ده مبارکه مدینه ده مبارکه

قسم دے دَ عرب هره حصه ده مبارکه

مکه کښې پیدا شوے دے زمونږ نبی سردار ﷺ

مکه کښې پیدا شوے دے محبوب دَ ربَ غفار

په دے وجه مکه کښې هره شپه ده مبارکه

مکه ده مبارکه مدینه ده مبارکه

مکه کښې اُوسیدلے دَ نبیانو دے سردار ﷺ

مکه کښې اُوسیدلے دے حضرت خیر الابرار ﷺ

په دي وجه مکه کښې هر ذرّه ده مبارکه

مکه ده مبارکه مدینه ده مبارکه

هر ځائے دَ مدینې دے نورانی تهول منور

قسم دے هر ذرّه ئې دَ دُنیا ده معطّر

په دي وجه چې دلته کښې روضه ده مبارکه

مکه ده مبارکه مدینه ده مبارکه

مدفن دَ مصطفیٰ ﷺ دے مدینه منوره

چمن دَ مصطفیٰ ﷺ دے مدینه منوره

له دي وجې ددغه در نقشه ده مبارکه

مکه ده مبارکه مدینه ده مبارکه

هر چائي صفت کړے په دُنیا کښې په هردر

احمد علی ئې دلته ذکر کړے مختصر

په دي وجه ئې دلته تذکره ده مبارکه

مـکـــه ده مبــارکـــه مـدینـــه ده مبــارکـــه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زمـونـــږه پـــه نبـی ﷺ سـره دُنیـا تـولـــه رڼـا شـوه
رڼــا شـــوه هـــر طـرف تــه نورانـی تـولــه فـضـا شـوه
هـر خـوا تــه پـه دُنیـا کښـې دَ بدعـت تورې تیـرې وې
هــر خـــوا تـــه پـــه دُنیـــا دَ ضــلالت تــورې تیـرې وې
تیـرې شـولې پـه مـنـډه گـمـراهـی هـره پـه شـا شـوه
رڼــا شـــوه هـــر طـرف تــه نورانـی تـولــه فـضـا شـوه
دَلات او دَ مــنـــات بتـــان پـــه زمـکـــه راگــزار شـول
هـر خـوا تـه مشـرکـان خـلـق په زمکه باندې خوار شول
تیـــاره دَ کـفـــر وشـــرك هـــر طـرف تـــه پـــه ژړا شـوه
رڼــا شـــوه هـــر طـرف تــه نورانـی تـولــه فـضـا شـوه
رڼــا شـــوه هـــر طـرف تــه دَ تـوحـید سـحـر سـحـر شـو
فـضـا شـوه منوره چې ښـکـاره دَ تـوحـیـد نـمـر شـو
کـعـبــه پـــه دې دُنیـــا بـانـدې بتــانو نــه صـفـا شـوه
رڼــا شـــوه هـــر طـرف تــه نورانـی تـولــه فـضـا شـوه
دَ شـــرك او دَ بـدعـــت بُتــان پـــه چـغـو پـــه ژړا شـو
بُتــان دَ ضــلالــت تـول هـرطـرف تـــه ښـــهٔ رُسـوا شـو
نــعــره چـې دَ تـوحـیـد کـلـه پـه ژبـه دَ طـٰهٰ ﷺ شـوه
رڼــا شـــوه هـــر طـرف تــه نورانـی تـولــه فـضـا شـوه

دَعلم شمع بله هر طرف ته په جهان شوه
دَعلم شمع بله دَنبی اٰخرزمان ﷺ شوه
احمد علی فضا کښي چي شامله حق وينا شوه
رڼا شوه هر طرف ته نوراني ټوله فضا شوه

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

رڼا په مصطفیٰ ﷺ سره مکه ټوله دُنیا شوه
رڼا شوه مدينه ښکلي ښائسته ټوله فضا شوه
رڼا دَ محمد ﷺ تيري کړي ختمي دَبدعت
رڼا دَ محمد ﷺ تيري کړي ختمي دَ غفلت
دُنیا د هر يو ګند نه ټوله پاکه شوه صفا شوه
رڼا شوه مدينه ښکلي ښائسته ټوله فضا شوه
رڼا دَ محمد ﷺ ختم کړۀ هر يو شرارت
رڼا دَ محمد ﷺ ختم کړۀ هرځائے نه ظلمت
دُنیا کښي دَ هر در ختمه هريوه بلا شوه
رڼا شوه مدينه ښکلي ښائسته ټوله فضا شوه
رڼا دَ محمد ﷺ سره مشرك دا په ژړا شو
رڼا دَ محمد ﷺ سره کافر انسان رُسوا شو
خوره په هر طرف باندي دَ پاك نبی ﷺ حيا شوه
رڼا شوه مدينه ښکلي ښائسته ټوله فضا شوه
رڼا دَ محمد ﷺ ختم کړۀ شر دَ شياطينو

رنـــا ســـره شـــو ختـــم هـــر ضـــرر دَ شیـــاطینـــو
احـــمـــدعـــلـــی ! پـــه دغـــي ســـره هـــر بـــدي پـــه شـــا شـــوه
رنـــا شـــوه مـــدینـــه ښـــکـــلـــي ښـــائـــستـــهٔ تـــولـــه فـــضـــا شـــوه

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مـــدنـــی خیـــر الابـــرار ﷺ دُنیـــا تـــه راغـــے
دوســـت دَربَ غـــنـــی غـــفـــار دُنیـــا تـــه راغـــے
دَتـــوحیـــد بـــوټـــے ئـــي نـــهـــال کـــړهٔ پـــه مـــکـــه کـــښـــي
دَتـــوحیـــد بـــوټـــے ئـــي نـــهـــال کـــړهٔ مـــدینـــه کـــښـــي
پـــه خـــزان پســـے بـــهـــار دُنیـــا تـــه راغـــے
دوســـت دَربَ غـــنـــی غـــفـــار دُنیـــا تـــه راغـــے
بـــدبـــوئـــی دَ هـــر یـــو در نـــه لاړه لاړه
بـــدبـــوئـــی دَ هـــر بشـــر نـــه لاړه لاړه
ښـــهٔ اخـــلاق ســـره غـــمـــخـــوار ﷺ دُنیـــا تـــه راغـــے
دوســـت دَربَ غـــنـــی غـــفـــار دُنیـــا تـــه راغـــے
دَ اســـلام پیـــغـــام شـــو خـــپـــور پـــه هـــر طـــرف
دا پیـــغـــام تـــمـــام شـــو خـــپـــور پـــه هـــر طـــرف
مـــعـــطّـــره پـــه هـــر لار دُنیـــا تـــه راغـــے
دوســـت دَربَ غـــنـــی غـــفـــار دُنیـــا تـــه راغـــے
شیـــاطیـــن دَ زمـــانـــي شـــول پـــه لـــړزان
احـــمـــد وائـــی پـــه لـــړزان شـــول کـــافـــران

چـــي مـــحبـــوب دَ هـــر دربـــار دُنیـــا تــــه راغــــے
دوســـت دَربَ غــنـــي غــفـــار دُنیـــا تــــه راغـــے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

تــوري ستـــرګـــي تـــوري دَ نبـــي اٰخـــرزمـــان ﷺ دي
تــوري تـــوري تـــوري دغــــه ښـکـلـــی پـــه جهـان دي
دغــــه ستـــرګـــي خـــوښـي دَ صدیقؓ او دَ عمـرؓ دي
دغــــه سترګـي خوښـي پــه دُنیـا دَ هـر افســـر دي
خـــوښـي دغــــه خـــوښـي دَ عثـمـان ابـن عـفـانؓ دي
تــوري تـــوري تـــوري دغــــه ښـکـلـــی پـــه جهـان دي
خـــوښـي ډيـري خـوښـي دغـــه سترګـــے دَ عـلـیؓ دي
خـــوښـــي ډيـــري خـوښـي پــه دُنیـا دَ هــرولـی دي
خـــوښـــي دغــــه خـــوښــي دَ حسنؓ او دَ سـلـمـانؓ دي
تــوري تـــوري تـــوري دغــــه ښـکـلـــی پـــه جهـان دي
خـــوښـــي دغــــه خـــوښــي ستـــرګـــي دَ انـصـــاردي
خـــوښـي دغــــه ستـــرګـــے دَ اصـحـابوؓ پـــه هر لاردي
خـــوښـــي دغــــه خـــوښـي دَ حسینؓ او دَ حسّـان دي
تــوري تـــوري تـــوري دغــــه ښـکـلـــی پـــه جهـان دي
خـــوښـــي دغــــه خـــوښـــي پـــه دُنیـا دَ هـــر بشـــر دي
خـــوښـــي دغــــه خـــوښـــي دَ مـولـیٰ غـنـی اکبـــر دي
دلـتـــه کـښـي احـمـده ! ستـــا اشـعـارو کـښـي بیـان دي

تـوري تـوري تـوري دغــه ښـکلـی پــه جهـان دی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زلـفـي ښـکلـي ښـکلـي دَ نبيانو دَ سلطان ﷺ دی
تــوري ښـکـلــي زلـفـي دَ نبـی اخــرزمـان ﷺ دی
څنګ چي دَ نبيـانو دَ سلطـان دا زلـفي ښکلی دی
داسـي زلـفـي دلتــه پـه دُنيا کښـي چا ليدلـی دی
زلــفــي خــوشبـوداري دَ محبـوب دَ دوجهـان ﷺ دی
تــوري ښـکـلــي زلـفـي دَ نبـی اخــرزمـان ﷺ دی
يـو وارے چـي چـا دَ مـصـطـفیٰ ﷺ زلفے ليدلی دی
وائــی هـغـه وائــی چـي دَ هـر چـانـه ښـهٔ ښکلی دی
دغــه ښـکـلـي ښـکـلـي دَ دُنيــا پـه هرمـکـان دی
تــوري ښـکـلــي زلـفـي دَ نبـی اخــرزمـان ﷺ دی
ښـکـلـی دی ښــهٔ ښـکلی دا بيان دَ عـالـمـانـو دے
ښـکلـی دی ښـهٔ ښـکلـی دَا بيـان دَ صـالـحانو دے
ځــکــه يـــادي شـوي دَ مـولـیٰ پـه دي قــرآن دی
تــوري ښـکـلــي زلـفـي دَ نبـی اخــرزمـان ﷺ دی
ښـکلـی دی ښـهٔ ښـکلی ځـکـه ذکرئي مولیٰ کوی
ښـکـلـی دی ښـهٔ ښـکلــی ځکه ذکرئي دُنيـا کوی
اے احـمـده ! يـادے دغــه هرځائے پـه مردان دی
تــوري ښـکـلــي زلـفـي دَ نبـی اخــرزمـان ﷺ دی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

بـاران دَرحـمتـونـو مـديـنـه کښـې راوريـږي
بـاران دَ مـديـنـې پـه هـر کـوڅـه کښـې راوريـږي
دا فـضـل وکـرم دے زمـونږ دَربَ پـه محـمـد ﷺ
دا رحـم راوريـږي مـديـنـه کښـې پـه احـمـد ﷺ
دا فـضـل دَ رسـول ﷺ پـه باغـيـچـه کښـې راوريـږي
بـاران دَرحـمتـونـو مـديـنـه کښـې راوريـږي
هـر ګـل پـه دے سـره دے مـديـنـه کښـې معطر
هـر ګـل دے قبـول کـړے د دې در نـه ښـۀ اثـر
رحـمـت ددغـه در پـه هـر حـصـه کښـې راوريـږي
بـاران دَرحـمتـونـو مـديـنـه کښـې راوريـږي
هـر لاره خـوشبـوداره هـر مـحـفـل دے خـوشبـودار
دُنيـا کښـې ددې در دے خـوشبـوداره هـر ګـفتـار
دا رحـم هـلتـه کښـې ذرَه ذرَه کښـې راوريـږي
بـاران دَرحـمتـونـو مـديـنـه کښـې راوريـږي
هـر رحـم وکـرم هـلتـه هـر سـاعـت دے راوريـږي
هـر ګـل پـه دغـې رحـم سـره هـلتـه تـازه کيـږي
دَ ورځـې راوريـږي هـره شپـه کښـې راوريـږي
بـاران دَرحـمتـونـو مـديـنـه کښـې راوريـږي
أثـار دغـه ليـدلـی عـاشـقـانـو پـه جهـان

أثار دغه ليدلي اے احمده ! مسلمان
دا فضل دَ نبی ﷺ پاکه روضه کښي راوريږي
باران دَ رحمتونو مدينه کښي راوريږي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مدينه ښکلے ښائسته ښار دے کنه
راشه سکون دَ زړهٔ قرار دے کنه
دلته رحمت دَ دوجهان شته کنه
دلته مسکن دَ تاجدار ﷺ دے کنه
دلته ښُکلا دَ هر بشر شته کنه
دلته محبوب دَ ربَ غفار ﷺ دے کنه
دلته ټکړه دَ پاك جنت شته کنه
دلته ساکن خير الابرار ﷺ دے کنه
دلته ياران دَ محمد ﷺ شته کنه
دلته هر يار گل دَ گلزار دے کنه
دلته صديقؓ عمرؓ عثمانؓ شته کنه
په هريو در دلته بهار دے کنه
تا نه تپوس کوی دَ سوال په انداز
دا دَ احمد علی گفتار دے کنه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

سکون دے مولیٰ ايښے دَ رسول ﷺ په تذکره کښي

قسم دے سکون پروت دے په مکه او مدینه کښې
سکون پسے تهٔ ګرځے په دُنیا کښې در په در
سکون پسے تهٔ ګرځے هرسحرا او مازیګر
سکون دغه موجود دے دَ رسول الله ﷺ کوځه کښې
قسم دے سکون پروت دے په مکه او مدینه کښې
سکون پسے چې ګرځے او طالب دَ اطمینان ئې
سکون نه چې محرومه په دُنیاکښې په جهان ئې
سکون دا ملاویږی دَ نبی ﷺ په باغیچه کښې
قسم دے سکون پروت دے په مکه او مدینه کښې
سکون پسے چې ګرځے دا سکون دے په سنت کښې
سکون پسے چې ګرځے دا سکون دے شریعت کښې
سکون دغه موجود دے دَ نبی ﷺ هره جمله کښې
قسم دے سکون پروت دے په مکه او مدینه کښې
طالب چې سکون ئې دَ قرآن کړه تلاوت
دَ پاك رسول الله ﷺ ورسره وکړه اطاعت
سکون دغه موندے نهٔ شی ددې دُنیا نشه کښې
قسم دے سکون پروت دے په مکه او مدینه کښې
طالب کهٔ سکون ئې دَ اصحابو اطاعت کړه
اصحابو سره هرځائے په دُنیا کښې محبت کړه
دَ ژوند دَ پاره ستوری دی رڼا په هره شپه کښې

قسم دے سکون پروت دے په مکه او مدینه کښي
طالب کۀ سکون ئي دَ مونځونو شۀ پابند
بدعت نه لرے وُسه د دُنیا دے دغه ګند
احمدعلی لیکلے دغه نعت دے په مزه کښي
قسم دے سکون پروت دے په مکه او مدینه کښي
قسم دے سکون پروت دے په مکه او مدینه کښي

## وعظ ونصیحت

دَ یو ظالم سره اُودریږمه نه
دَ مظلومانو نه پټیږمه نه
دَهر حاسد سره حسد کوومه
دَ شیطانانو پکاریږمه نه
د شرابیانو نه نفرت کوومه
دَ سود خورو دلته خوښیږمه نه
دَ قاتلانو ملګرتیا نه کوُم
په ظالمانو خفه کیږمه نه
دَ بدعتی نه زۀ نفرت کوومه
په یو ګمراه پسے ژړیږمه نه
زۀ دَ توحید جهنډه په لاس ساتمه
دَ یو مشرك سره اُوسیږمه نه
احمد په دي باندي خوشحاله یمه

چې دَ نيکانو نه بلېږمه نه

وعظ ونصيحت

څوك چې تول نبيان اور مُرسلان مني
هغه به دُنيا کښې حق بيان مني
څوك چې دَ نبي ﷺ ښۀ طريقه مني
هغه نُور رښا به دَ قرآن مني
څوك چې فضيلت دَ هر امام مني
هغه به دُنيا کښې تول نيکان مني
څوك په رښيا پسې روان وي ځي
هغه په دُنيا کښې حق اعلان مني
څوك دَ انوارو سلسله مني
هغه اولياء تول دَجهان مني
څوك مني جنت او جهنم چې نن
اے احمده! هغه به ميزان مني

وعظ ونصيحت

شر له شر له دلته زور مۀ ورکوه
دغې زړۀ له ره رنګ تور مۀ ورکوه
معصيت کښې متبلا چې يو بشر شي
په ګناه ورله پيغور مۀ ورکوه
دَ توحيد په رنګ کښې رنګ شۀ مسلمانه

ورله رنګ په دُنیا نُور مه ورکوه

دَ رحمان وینا کوه په هره لار

دَ شیطان وینا له زور مه ورکوه

بد کلام له ره بیا زور مه ورکوه

دَ اسلام دَ بُنیادونو چې دښمن دے

بدعتی له د زړهٔ کور مه ورکوه

دَ هر چا دَ مینې بیل جُدا مقام دے

مینه چا له دَ خور ورور مه ورکوه

چې دَ مینې محبت په خوند پوهیږي

دغه زړهٔ له بیا ټکور مه ورکوه

اے احمده! چې دَ خیر په لاره نهٔ ځي

لاس کښې لاس کښې دَ شر لور مه ورکوه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ستا راتلو سره بدعت له دُنیا لاړو

شیطاني او شرارت له دُنیا لاړو

ستا له مخه دا جهان رڼا رڼا شو

ستا له مخه هر آسمان رڼا رڼا شو

ګمراهي هر یو ظلمت له دُنیا لاړو

شیطاني او شرارت له دُنیا لاړو

ستا له مخه هر یو زړهٔ په اطمینان شو

ستا له مخه کور دَ هر بشر ودان شو
بې دینې سره لعنت له دُنیا لاړو
شیطاني او شرارت له دُنیا لاړو
ستا له مخه نوراني ټوله فضا شوه
ستا له مخه معطره دا دُنیا شوه
کفر وشرك هر ضلالت له دُنیا لاړو
شیطاني او شرارت له دُنیا لاړو
ستا له مخه دَ احمد کلے ودان شو
ستا له مخه دَ ایمان په لار روان شو
هر حسد هر عداوت له دُنیا لاړو
شیطاني او شرارت له دُنیا لاړو

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ستا راتګ سره نشه له دُنیا لاړه
دَ شیطان هره حصه له دُنیا لاړه
ستا راتلو سره هرکور کښې خوشحالی شوه
ختمې ټولې دُښمنۍ شوې وروولی شوه
دَ کفارو غلبه له دُنیا لاړه
ستا راتګ سره نشه له دُنیا لاړه
ستا راتلو سره حیا دَ کور څادر شو
دا څادر په دې جهان دَ هر بشر شو

بد امني هر وسوسه له دُنيا دُنيا لاړه
ستا راتګ سره نشه له دُنيا لاړه
دَ ايمان ډيوه شوه په هر کور کښې
دَ عرفان ډيوه شوه بله په هر لور کښې
دَ نفرت هره تېوته له دُنيا لاړه
ستا راتګ سره نشه له دُنيا لاړه
مال او تن دَ هر بشر شو په امن
اے احمد علي! هر زړهٔ شو لو چمن
دَ شيطان هره جمله له دُنيا لاړه
ستا راتګ سره نشه له دُنيا لاړه

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

ستا په نُور سره ښائسته سحر ماښام دے
دَ ژوندون دَ پاره ژوند دغه تمام دے
هريو فکر دے عالي دے له أسمانه
هريو در دے ډير اوچت په هر مقام دے
هر قدم چې ستا په خاورو لګيدلے
دغه خاوره کښې علاج دَ هر اندام دے
ستا دَ ښکلو ښکلو شونډو نه قربان شم
قدرمنده په دې سره هريو جام دے
د دُنيا دَ درسکون دے ستا په دين کښې

دَ هــرچــا دَ پــاره پــروت پــه کښــې آرام دے
تــــل دَامـــن پيـــغـــام تـــا دلتـــــه راوړے
نـــوم دَامـــن پــــه دُنيـــا دغــــه اســلام دے
ستــا مـدّاح دی پــه دُنيــا کښـې خـاص وعـام
ستــــا وجــود ددې جهـــان مــــاوِ تــمـــام دے
احــمــد وائـــی ستــا نسبــت دے اُوچــت کــړے
ستــــا غــلام دے کـــۀ غــلام دے دَ غــلام دے

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دُنيـا کښـې دَ هـر چـا دَ زړۀ قـرار پـه مـدينـه کښـې
دا ګل پـه مـدينـه کښـې دے دا يار پـه مدينه کښـې
رڼـا پــه مـديـنــه کښـې ده وفـا پـه مـديـنـه کښـې
دلدار ﷺ پـه مدينـه کښـې دے سردار ﷺ پـه مدينه کښـې
ښُـکـلا پــه مـديـنــه کښـې ده حيـا پـه مـديـنـه کښـې
سرکار ﷺ پـه مدينـه کښـې دے دربار پـه ﷺ مدينه کښـې
رهبـر پــه مـديـنـه کښـې دے سحـر پـه مـديـنـه کښـې
تاجدار ﷺ پــه مدينـه کښـې دے روزګار پـه مدينه کښـې
قـمـر پـه مدينـه کښـې دے نُور نمـر پـه مدينه کښـې
مزار پـه مدينه کښـې دے دا دار پـه مدينه کښـې

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زمـا دَ زړۀ سـکـون او اطـمـيـنـا ن پــه مـديـنـه کښـې

هر اَن په مدینه کښې دے جانان ﷺ په مدینه کښې
هر اَن په مدینه کښې دے محبوب دَ دوجهان
هر اَن په مدینه کښې دے محبوب دَ پاك سبحان
عالي دَ هر مکان نه هر مکان په مدینه کښې
هر اَن په مدینه کښې دے جانان ﷺ په مدینه کښې
هر اَن په مدینه کښې دے افسر دَ مُرسلانو
هر اَن په مدینه کښې دے رهبر دَ رهبرانو
بُنیاد دَ هر بشر دَ هر ایمان په مدینه کښې
هر اَن په مدینه کښې دے جانان ﷺ په مدینه کښې
هر اَن په مدینه کښې دے رحمت دَ کُل عالم
هر اَن په مدینه کښې دے مشفقه محترم
عالي دَ هر چمن نه گلستان په مدینه کښې
هر اَن په مدینه کښې دے جانان ﷺ په مدینه کښې
هر اَن په مدینه کښې دے شافع دَ خپل اُمت
هر اَن په مدینه کښې دے صادق په صداقت
امین دَ کائنات حسین انسان په مدینه کښې
هر اَن په مدینه کښې دے جانان ﷺ په مدینه کښې
هر اَن په مدینه کښې دے احمد وائی عزت
هر اَن په مدینه کښې دے رحمت سره برکت
هر خیر راجمع کړے پاك سبحان په مدینه کښې

## هر آن په مدینه کښې دے جانان ﷺ په ملینه کښې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَربَ نیازبین محمد مصطفیٰ ﷺ دے
طٰهٰ یٰسین محمد مصطفیٰ ﷺ دے
زمونږ سره دَ قرآن زړهٔ کښې وُسی
دَ هر مؤمن مسلمان زړهٔ کښې وُسی
ایمان یقین محمد مصطفیٰ ﷺ دے
دَربَ نیازبین محمد مصطفیٰ ﷺ دے
پاس له آسمان په لامکان کښې یاد دے
د دې دُنیا په هر مکان کښې یاد دے
په ربَ مئین محمد مصطفیٰ ﷺ دے
دَربَ نیازبین محمد مصطفیٰ ﷺ دے
چې له چا نه مقدَم یادیږی
چې له چا نه محترم یادیږی
دا اوّلین محمد مصطفیٰ ﷺ دے
دَربَ نیازبین محمد مصطفیٰ ﷺ دے
سخر دَ حضرت عثمانؓ حضرت علیؓ دے
نبی دَ ټولو آخری نبی ﷺ دے
دا آخرین محمد مصطفیٰ ﷺ دے
دَربَ نیازبین محمد مصطفیٰ ﷺ دے

چې په رښتيا ئې ټول جهان ګواه دے
عرب عجم کښې هر انسان ګواه دے
دغه امين محمد مصطفىٰ ﷺ دے
دَرب نيازين محمد مصطفىٰ ﷺ دے

بشر دے بيا هم فرښتو نه غوره
تذکره دائې تذکرو نه غوره
دا بهترين محمد مصطفىٰ ﷺ دے
دَرب نيازين محمد مصطفىٰ ﷺ دے

پخپله ربّ ځان له محبوب ګرځولے
احمده! دلته ئې مطلوب ګرځولے
دغه حسين محمد مصطفىٰ ﷺ دے
دَرب نيازين محمد مصطفىٰ ﷺ دے

نعتِ مصطفىٰ ﷺ

خدايه ما مۀ کړے دَرسول ﷺ دَ يو ادا نه جُدا
مۀ کړه خدايه! دَرسول ﷺ ما دَرښا نه جُدا

هره لمحه ددې جهان چې تيرومه دلته
ما په کښې نۀ کړے يو ساعت دَ مصطفىٰ ﷺ نه جُدا

وطن بدن زما تل ښکلے په دې نُور سره کړے
خدايه چې نۀ شمه دُنيا کښې دَ طٰهٰ ﷺ جدا

زما په ژبه دَنبي ﷺ ټول حديثونه وِے بس

مـهٔ کـړې مـولـیٰ مـا دَرسول ﷺ پاکې وینا نه جُدا
زمـا پـه سترګوپـه دمـاغـو کښې بـس تل وُسیدے
مـولـیٰ احـمـد نـهٔ کـړے هیـڅ کله مجتبیٰ ﷺ نه جُدا

## دَبدعت مذمت

بـدعــت دَ ټـول جهــان دَ پـاره تـکــه تـوره شپــه ده
بـدبـوَ هــرمــکــان دَ پـــاره تـکــه تـوره شپــه ده
بـدعت کښې په جهان باندې هیڅ خیر په جهان نشته
دُنیــا کښــې نیك انســان دَ پـاره تـکـه تـوره شپـه ده
بـدعــت ازغــی دُنیــا کښې دَ تکلیف او مصیبت دی
دُنیــا کښــې مســلــمــان دَ پـاره تـکـه تـوره شپـه ده
بـدعــت دَ هـریـو کـور دَ پـاره شپـول دَ مـصیبـت دے
دانـــا او هـــرنـــادان دَ پـــاره تـکـــه تـوره شپـــه ده
بـدعـت پـه دې دُنیـا کښې دَ رسـول ﷺ مخالفت دے
احـمـده ! هـریـو ځـوان دَ پـاره تـکـه تـوره شپـه ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دُوســت دَ مــولــیٰ غــنــی سبــحــان ســاتــمــه
ورســـره نُـــورزهٔ دَ قـــرآن ســـاتــمــه
دَ زړهٔ تــکـــور مـــې دَ دُنیـــا دَ درد مے
دَ ستـــرګـــو تـــور مـــې دَ دُنیـــا دَ درد مے
داســې عـظـیـم شـائستـهٔ انسـان سـاتـمـه

ورسره نُورزهٔ دَ قرآن ساتمه

دَ زړهٔ سکون دلته دَ هر بشر دے

دَ زړهٔ سکون نوراني نور قمر دے

نمر رهنما نُور دَ ایمان ساتمه

ورسره نُورزهٔ دَ قرآن ساتمه

دَ زړهٔ سکون دَ ښکلو خلقو تولو

ژوند دَ ژوندون دَ ښُکلو خلقو تولو

دَ سلطانانو دا سلطان ساتمه

ورسره نُورزهٔ دَ قرآن ساتمه

په ټول سیرت لکه دَ ګل ښائسته دے

ورسره هر ځائے هر محفل ښائسته دے

زهٔ ئي احمد داسي بیان ساتمه

ورسره نُورزهٔ دَ قرآن ساتمه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دردے درد محمد ﷺ دَ رحمتونو

دردے درد محمد ﷺ دَ برکتونو

ربَ دے بوځه چي ئي ووینـي پخپله

دردے درد محمد ﷺ دَ نعمتونو

نشته نشته داسي دربل په جهان

دردے درد محمد دَ همتونو

خدائے نصیب دے کړه احمده! دغه در

دردے دَرِدَ محمد ﷺ دَ نسبتونو

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

قسم دے بهترینه طریقه دَ محمد ﷺ ده

دَ ژوند دَ پاره ښکلے نظریه دَ محمد ﷺ ده

دُنیا کښې دَ دُنیا دَ مسلمان دَ پاره هم

دُنیا کښې دَ دُنیا دَ هر انسان دَ پاره هم

رښا دَ هریو در هره جمله دَ محمد ﷺ ده

قسم دے بهترینه طریقه دَ محمد ﷺ ده

دُنیا کښې دَ فلاح بهبود دَ پاره هر ساعت

دُنیا کښې دَ فلاح بهبود دَ پاره دَ اُمت

قسم دے بهترینه ښۀ اُسوه دَ محمد ﷺ ده

قسم دے بهترینه طریقه دَ محمد ﷺ ده

دُنیا کښې دَ هرچا دَ خوشحالو ده ذریعه

دُنیا کښې ده دَ ژوند دَ پاره ښکلے نمونه

صفا دَ ژوند دَ پاره ائینه دَ محمد ﷺ ده

قسم دے بهترینه طریقه دَ محمد ﷺ ده

سکون دَ هر بشر دے په کښې پروت د تول جهان

احمدلري دُنیا کښې دا یقین او دا ایمان

دُنیا کښې یو ژوندی دا معجزه دَ محمد ﷺ ده

قسم دے بهترینه طریقه دَ محمد ﷺ ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نُور رنا دَ هر یو در
محمد خیر البشر ﷺ
انبیاؤ کښې افسر
محمد خیر البشر ﷺ
دَ هرچا دلته اُستاد
دَ هرچا دلته بُنیاد
دَ دُنیا دَ در سحر
محمد خیر البشر ﷺ
مجسَم دے محبت
تول رحمت دے تول رحمت
بره نُور دے دَ قمر
محمد خیر البشر ﷺ
دَ هرچا دَ زړه علاج
دَ هرچا دَ سر دے تاج
دَ چا نُور دَ نظر
محمد خیر البشر ﷺ
دَ غریب سرې دے مل
دَ یتیم سره دے تل

دَ هــــرچـــــانـــــه دے بهتـــر
مـــحـــمـــد خيـــر البشـــر ﷺ
ديـــن دَ امـــن ئـــي اســـلام
بهتـــريـــن ئـــي دے كـــلام
احـــمـــد وائـــى مـــختـــصـــر
مـــحـــمـــد خيـــر البشـــر ﷺ

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

لـويـه خدايـه ! ستـانـه ژوند دَ سكون غـوارم
مـحبـت سـره تـرلـے ژونـدون غـوارم
تـعـلـق درنـه زۀ غـوارم دَ نبـى ﷺ
هـر شيـطـان نـه پـه دُنيـا كنبـي بيـلتـون غوارم
دَ بـدعـت تـورو تيـرو نـه مـاكـړے لـرے
پـه سـنـت سـره خپـل ژونـد كنبـي بـدلـون غـوارم
چـي دَ ميـنـي مـحبـت اخـلاص نـه ډك وى
هـر ساعـت دغـه ښائسـتـۀ ښـۀ مضمون غـوارم
اتبـاع دَ مـحـمـد ﷺ زمـا نـصيـب كـړے
پـه وجـود كنبـي زۀ دنـنـه بيـرون غـوارم
غـوارم ستـانـه زۀ احـمـد دَ رسـول ﷺ ميـنـه
دغـه ميـنـه زۀ پـه شـان دَ مـجـنـون غـوارم

★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ جنت یو ټکړه ده مدینه ده
دَ انوارو یو چینه ده مدینه ده
دلته هر ځائے کښې رحمت شته ملاویږي
دلته هر ځائے لوئے نسبت شته ملاویږي
دَ عرب یوه حصه ده مدینه ده
دَ انوارو یو چینه ده مدینه ده
دلته نُور په هر یو در باندې وریږي
دلته نُور په هر بشر باندې وریږي
دَ ګلونو ګلدسته ده مدینه ده
دَ انوارو یو چینه ده مدینه ده
ساکنان لکه دَ نمر ئې تول ځلیږي
عاشقان لکه دَ نمر ئې تول ځلیږي
د انوارو مجموعه ده مدینه ده
دَ انوارو یو چینه ده مدینه ده
خوشبودار دی چې خوک دلته کښې وُسیږي
تابعدار دی چې خوک دلته کښې وُسیږي
دَ نجات یو سفینه ده مدینه ده
دَ انوارو یو چینه ده مدینه ده
اے احمد علی! په نُور سره یادیږي

هغه سيَدالبشر ﷺ دلته وُسيږي
چې شائسته ئې تذکره ده مدينه ده
دَ انوارو يو چينه ده مدينه ده

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

چرته چې ذکر دَ نبی اٰخرزمان ﷺ کيږي
هلته قسم دے دَ انوارو تش باران کيږي
مادي داليدلی دا آثارئي محفلونو کښې تل
مادي ليدلی دا آثارئي په نعتونو کښې تل
چرته چې ذکر دَ نبيانو دَ سلطان ﷺ کيږي
هلته قسم دے دَ انوارو تش باران کيږي
مادي ليدلی رحمتونه په دې خپلو سترګو
مادي ليدلی نعمتونه په دې خپلو سترګو
چرته چې ذکر دَ محبوب دَ پاك سبحان ﷺ کيږي
هلته قسم دے دَ انوارو تش باران کيږي
داسې تول وائی په دُنيا کښې عالمان خلق
داسې تول وائی په دُنيا کښې عاشقان خلق
دَ نُور ذکر دلته چې چرته په جهان کيږي
هلته قسم دے دَ انوارو تش باران کيږي
په دې خبره مې ګواه دی عاشقان دَ نبی ﷺ
په دې خبره مې ګواه دی اُمتيان دَ نبی ﷺ

احمده ! کوم ځـائـې کښې چې ذکرد جانان کیږي
هـلـتـه قسـم دې د انـوارو تـش بـاران کیږي

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

چـرتـه چې ذکـر دَ حـضرت خیر الانام ﷺ کیږي
هـلتـه کښې فـضل پـه هریو بشر غلام کیږي
هـلتـه کښـې فـضل رحـمتونـه بـرابـر وریـږي
هـلتـه کښـې فضل رحـمتونـه پـه هر در وریږي
کُوم ځـائـې چې دا عـمـل پـه شوق سره مُدام کیږي
هـلتـه کښـې فـضل پـه هریو بشر غلام کیږي
هـلتـه کښـې فـضل دَ مولیٰ پـه هر بشر وریږي
هـلتـه کښې فضل دَ مولیٰ پـه هر افسر وریږي
کوم ځـائـې چې دا عـمل سحر سره ماښام کیږي
هـلتـه کښـې فـضل پـه هریو بشر غلام کیږي
هلتـه کښـې فـضل پـه دُنیـا وی بې حسابه دَ ربّ
هلتـه کښې فـضل پـه هرخوا وی بې حسابه دَ ربّ
کوم ځـائـې چې دا عـمل دُنیا کښې بنۀ تمام کیږي
هـلتـه کښـې فـضل پـه هریو بشر غلام کیږي
هـلتـه بـه مینـه مـحبـت دَ هـریـشـر سـره وی
هـلتـه بـه مینـه محبـت دَ هـریـو در سـره وی
احـمـده ! کـلـه چې درود سـره سلام کیږي

هلته کښې فضل په هر يو بشر غلام کيږي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

تهٔ محبوب هر بشر ئې هر بشر درنه ځاريږي
تهٔ محبوب دَربَ اکبر ئې بحر وبر درنه ځاريږي

ستا ښائسته ښکلي صفات دي
بهترين په ټول جهات دي
افسرانو کښې افسر ئې هرافسر درنه ځاريږي
تهٔ محبوب دَربَ اکبر ئې بحر وبر درنه ځاريږي

تهٔ خاتم النبيئين ئې
تهٔ امام المُرسلين ئې
رهبرانو له رهبر ئې هر رهبر درنه ځاريږي
تهٔ محبوب دَربَ اکبر ئې بحر وبر درنه ځاريږي

تهٔ مئين په ټول اُمت ئې
مجسَمه ټول رحمت ئې
بهترين ئې تهٔ بهتر ئې هر بهتر درنه ځاريږي
تهٔ محبوب دَربَ اکبر ئې بحر وبر درنه ځاريږي

ستا اخلاق ښکلی قرآن دی
احمد وائي عاليشان دی
دلبرانو له دلبر ئې هر دلبر درنه ځاريږي
تهٔ محبوب دَربَ اکبر ئې بحر وبر درنه ځاريږي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ پاك نبي ﷺ سیرت ښکلے نقشه ده ددې ژوند
ښُودلے ئې هرچاته طریقه ده ددې ژوند
هرڅوك ئې دَ ژوندون په طریقه دے خبر کړے
هرچا ترینه زده کړے فلسفه ده ددې ژوند
هر کار دَ شریعت ئې دے ښودلے مکمل
قسم دے که رکوع ده که سجده ده ددې ژوند
راضي کړے رب راضي کړے درنه رب ناراضه نهٔ شي
مقصد سره ښُودلے ئې خلاصه ده ددې ژوند
رڼا ورسره هرڅهٔ په جهان دی دَ جهان
رڼا ئې رڼا نُور سره هر شپه ده ددې ژوند
چمن ورسره دلته په جهان دے ښائسته شوے
ښائسته په دغې نُور هره حصه ده ددې ژوند
اُتِین ئې دَ جهان دے دَ مولیٰ دغه کلام
باقي ئې تر قیامته معجزه ده ددې ژوند
وینا کښې ئې دي خوند داسې احمد دَ جهان وائي
قسم دے اتباع کښې ئې مزه ده ددې ژوند

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ هرچا دَ زړهٔ قرار زمونږ نبي ﷺ دے
په نبیانو کښې سردار ﷺ زمونږ نبي ﷺ دے

دَ ګلونو ګلدستــهٔ کښـي ښائسته‌ٔ ګل دے
محفلونو کښي ښائسته‌ٔ ئي هر محفل دے
دَ هـــرچـــا دَ غـــاړي هـــار زمونـــږ نبـــی ﷺ دے
پـه نبيـانـو کښي سردار ﷺ زمونـږ نبی ﷺ دے

شـــريـعـــت ئـي نُـور رنـــا دَ هـــرتــورتـم ده
شـــريـعـــت ئـــي نُـور رنـــا دَ ټـــول عـــالــم ده
پـــه خـــزان پسے بهـــار زمـونـــږ نبـــی ﷺ دے
پـه نبيـانـو کښي سردار ﷺ زمونـږ نبی ﷺ دے

مهـــربـــان پـــه غـــريـــب او پـــه يتيـم دے
لـــه هـــرچـانـــه پـــه دُنيا کښي زيات کـريم دے
پـــه دُنيـــا کښـي دا دلدار ﷺ زمونـږ نبـی ﷺ دے
پـه نبيـانـو کښي سردار ﷺ زمونـږ نبی ﷺ دے

دَ قـــرآن ډيـــوه پـــه لاس دلتـــه کښـــي راغـــے
دَ عـــرفـــان ډيـــوه پـــه لاس دلتـــه کښـــي راغـــے
دا داعـــی دَ نيـــغـــي لار زمـــونـــږ نبـــی ﷺ دے
پـه نبيـانـو کښي سردار ﷺ زمونـږ نبی ﷺ دے

مـــا احـــمـــد ئـــي ذکـــر کـــړے پـــه ادب دے
دَ عـــجـــم ســـره امـــام دَ ټـــول عـــرب دے
بـــل مـحبـوب دَ ربَ غـفـار زمـونـږ نبـی ﷺ دے
پـه نبيـانـو کښي سردار ﷺ زمونـږ نبی ﷺ دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دوه ټـکـړي دَ قـمـر بـره پـه جهـان دے مـعـجـزه ده
عـالیشـان دے مـعـجـزه ده دا قـرآن دے مـعـجـزه ده

تـاتـه هـر ځائے سـلامونـه پـه مکه کښې بیا دَ کاڼړو
دَ شـجـر تـا تـه سلام هـریـو بیـان دے مـعـجـزه ده

دَ بـدر اُحـد میـدان کښـې هـغـه نـاسـتـه اوولاړه
دغـه تـلـل په هر میدان کښې په میدان دے معجزه ده

دَ هـجـرت پـه تـوره شپـه کښې کافران شول تول ذلیله
دا دُنیـا کښـې قـدرمـنـده عـالیشـان دے مـعـجـزه ده

اَس پـه زمکـه کښـې شـو ښخ تـاپسے وو چې روان
دَ دُنیـا د دغـې در دلـتـه عیـان دے مـعـجـزه ده

دَ صـدیقؓ عـمرؓ مقام پـه هـر ځائے کښې هرساعت
دَ حیـا ښـکـلـے ځـادر دَ عثمـانؓ دے معـجـزه ده

دَ عـلیؓ پـه لاس کښې تـوره دَ خیبر دَ هـغـه فـتـحـه
دَ بـلالؓ پـه ژبـه ښـکلـے هر اَذان دے معجزه ده

دَ دُنیـا دَ در څـهٔ څیـز یـا اُوبـه ومے کـهٔ خوراك
لږ چې ډیرولـه کافی شو دغـه شان دے معجزه ده

هـریـو قـول دے مـعـجـزه دے احمد وائی دَ جهـان
بـاغ دُنیـا کښې دَ کجهـورو دَ سلمان دے معجزه ده

★★★★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

بهترین سیاستدان ئي ، بهترین تهٔ حکمران ئي
تهٔ محبوب دَ تول جهان ئي، ته محبوب دَ پاك سبحان ئي
یو رهبر دَ هریو درئی ، په وُجود سحر سحر ئي
قدرمنده عالیشان ئي ، تهٔ سپرلے دَ هر خزان ئي
تهٔ محبوب دَ تول جهان ئي، ته محبوب دَ پاك سبحان ئي
تهٔ طالب ئي هم مطلوب ئي ، تهٔ مُحب ئي هم محبوب ئي
هم سخی ئي مهربان ئي ، تل دَ حق تهٔ ترجمان ئي
تهٔ محبوب دَ تول جهان ئي، ته محبوب دَ پاك سبحان ئي
لاثانی ئي په مخلوق کښې ، اَسانی ئي په مخلوق کښې
نُور دَ علم دَ عرفان ئي تهٔ یو گل دَ گلستان ئي
تهٔ محبوب دَ تول جهان ئي، ته محبوب دَ پاك سبحان ئي
هریو ستا دَ در غلام دے ، مقتدی دے کهٔ امام دے
سیورے هر ځائے دَ انسان ئي ، یو حصه دَ هرایمان ئي
تهٔ محبوب دَ تول جهان ئي، ته محبوب دَ پاك سبحان ئي
زهٔ احمد یم ستا په لاره ، مصطفیٰ خیر الابراره ﷺ
تهٔ علاج دَ هرخفگان ئي ، یاد په زمکه په اَسمان ئي
تهٔ محبوب دَ تول جهان ئي، ته محبوب دَ پاك سبحان ئي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ خدائي فضل وکرم دَ ربَ احسان دے محمد ﷺ

مهتاب دے یا آفتاب دَ ټول جهان دے محمد ﷺ
رڼا دَ هریو درد دَ هدایت ده دَ جهان
دُنیا کښې د دُنیا دَ درعرفان دے محمد ﷺ
سیرت صورت ښائسته ئي مثالي په هر مقام
یو ګل دې دُنیا دَ ګلستان دے محمد ﷺ
امام دَ امامانو مقتدا دَ علماء
رڼا په هره زمکه په آسمان دے محمد ﷺ
علاج دَ رنځورانو دَ دُنیا دَ ټولو خلقو
دَ هرچا دَ زړهٔ هرځائے اطمینان دے محمد ﷺ
صفات ئې دي ګلونه ګلدسته ده دَ جهان
احمده! په هرخوا داسې بیان دے محمد ﷺ

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

انوار دي دُنیا دي ټول انوار دَ محمد ﷺ
خوارهٔ دي په دُنیا کښې ټول اسرار دَ محمد ﷺ
هر ګل کوي خندا دې جهان په محمد ﷺ
هر ګل کړي خوشحالي دغه چمن کښې دَ جهان
صورت کښې ئي مُسکا ده په بهار دَ محمد ﷺ
ګواه په دې خبره یو آیت مې دَ قرآن دے
ګفتار دے دَ مولیٰ هریو ګفتار دَ محمد ﷺ
اخلاق ئې دَ جهان ښکلے کتاب زمونږ دَ ربَ دے

لــه دي وجـي عــالـی دے هـر کـردار دَ مـحـمـد ﷺ

مــکــان او لامــکــان کښـي پـه عـزت سره یـادیـږي

دیـدار دَ پــاك روضــي کــنــه دیـدار دَ مـحـمـد ﷺ

ګلونه دا ښائسته ښائسته به ستا نه تول شی هیر

کـۀ ستـا شـو پـه نـظـر ښائسته ګلزار دَ محمد ﷺ

لـعـلـونــه دَ جـهــان دی تـول یــاران دَ مـحـمـد ﷺ

پــه ګـل سـره یـادیــږی هـریـو یـار دَ مـحـمـد ﷺ

رنـائـي دَ سـنـت پـه تول جهـان کښـي خوره شوے

مـنـلـے هـم مـقــام دے دا اغیــار دَ مـحـمـد ﷺ

فـکــرونـو او خیــالـونـو کښـي رنـا دَ هـر بشـر ده

احـمـــده ! دا رنــا ده پـــه هـــرلار دَ مـحـمـد ﷺ

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ آسمـان نـه اُوچت بره ، دغـه شان دَ محمد ﷺ دے

بهتـرین لـه بحـر وبره ، دغـه شان دَ محمد ﷺ دے

دَ فلاح سبب دُنیا کښـي ، پـه هر کار او په وینا کښي

مـحـمـد ﷺ دے محمد ﷺ دے مقتدا زما دُنیا کښي

ده خبـره مـعتبـره ، دغــه شـان دَ مـحـمـد ﷺ دے

بهتـرین لـه بحـر وبره ، دغـه شان دَ محمد ﷺ دے

پـاس لـه عـرشـه لـه آسمانه ، د دُنیا لـه هر جهانه

دا مقـام دَ مـحـمـد ﷺ دے ځـان خبـر کړه لـه بیانه

نــورانــی نُـور مـنـوَره ، دغــه شان دَ مـحـمـد ﷺ دے
بهتــرین لــه بـحـر وبـره ، دغـه شان دَ محمد ﷺ دے
په نبیانو کښي افضل دے ، نوراني ئي هر محفل دے
محمد ﷺ دے محمد ﷺ دے معطّره خوشبو تل دے
ځـان خبر کړه لــه خبره، دغـه شان دَ محمد ﷺ دے
بهتــرین لــه بـحـر وبـره ، دغـه شان دَ محمد ﷺ دے
پـه سنت کښي ئي ده مینه ، شریعت کښي ئي ده مینه
مـحـمـد ﷺ دَ تول جهان دے هدایت کښي ئي ده مینه
ده خبــره بـــرابـــره ، دغــــه شــــان دَ مـحـمـد ﷺ دے
بهتــرین لــه بـحـر وبـره ، دغـه شان دَ محمد ﷺ دے
دَ احـمـد زړهٔ کښـي وُسـیـږي ، اطـمـیـنـان پري ملاویږي
محمد ﷺ دے محمد ﷺ دے چي ئي ذکر کله کیږي
نـهٔ دي پټ لـه دي نـظره ، دغـه شان دَ محمد ﷺ دے
بهتــرین لــه بـحـر وبـره ، دغـه شان دَ محمد ﷺ دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ګـل دَ ګـلاب دے ښـائسـتـهٔ ګـل یـا دَ ریحان ښکاری
داسـي دُنـیـا کښـي پـه دُنیا زما جانان ﷺ ښکاری
حُـسـن ښـُکـلا تــه ئي دُنـیــا کښي هر بشر حیران دے
حُـسـن ښـُکـلا تــه ئي دُنیا کښي هر افسر حیران دے
پـه دي ګـلـونـو کښـي مـمـتـاز پـه تول جهـان ښـکـاری

داسې دُنیا کښې په دُنیا زما جانان ﷺ ښکاری
ورته قسم دے په کتو باندې به موړ نۀ شے تۀ
ورته قسم دے په لیدو باندې به موړ نۀ شے تۀ
دا سې دا ګل د دې دُنیا په هر مکان ښکاری
داسې دُنیا کښې په دُنیا زما جانان ﷺ ښکاری
ورته په حُسن کښې ښُکلا دَ ګلاب نۀ رسیږی
ورته په حُسن کښې ښُکلا دَ یو باب نۀ رسیږی
داسې دُنیا کښې پاك نبی آخرزمان ﷺ ښکاری
داسې دُنیا کښې په دُنیا زما جانان ﷺ ښکاری
ورته په حُسن کښې ښُکلا دَ ریحان نۀ رسیږی
ورته په حُسن کښې ښُکلا دَ جهان نۀ رسیږی
احمده ! ګل دغه حسین ډیر عالیشان ښکاری
داسې دُنیا کښې په دُنیا زما جانان ﷺ ښکاری

## نصیحت

خبر نۀ شوې دُنیا کښې دَ خپل دینه لا تراوسه
په دې وجه ئې دلته کښې لعینه لا تراوُسه
قدم دے دَ ابلیس په قدم ایښے قدم تا دے
ځکه دے یادوی تول بدترینه لا تراوُسه
هر کار کښې دَ نبی ﷺ نه تۀ روان ئې بل طرف ته
په شر باندې ئې دلته کښې مئینه لا تراوسه

قـران نـه لـرے لـرے پـه دُنیا کښې تـهٔ اُوسیږے
لـه دې وجې ئې دلتـه کښې غـمګینه لا تـراوسـه

بدعـت بـاندې مـئین ئې دغـه کار دے دَ شیطان
دُښـمـن ئـې دَ اَلـه الـغـلمیـنـه لا تـراوسـه

نـاصح درتـه احـمد دے مختـصر ئې نصیحت دے
خبـره ده تـرخـه پـه تـا شیـرینـه لا تـراوسـه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

چـې نـصیـب چـا تـه رضـا دَ مـحـمـد ﷺ ده
ورسـره حُسـن ښُـکـلا دَ مـحـمـد ﷺ ده

ورسـره ددې جهـان هـریـو نـعـمـت دے
چـې نـصیـب چـا تـه دُعـا دَ مـحـمـد ﷺ ده

ورسـره د دې جهـان ښـکـلـی اخـلاق دی
چـې نـصیـب چـا تـه وفـا دَ مـحـمـد ﷺ ده

ورسـره ددې جهـان دی مـلـغـرلـے
چـې نـصیـب چـاتـه ویـنـا دَ مـحـمـد ﷺ ده

هـغـه ولـے دَ تیـرو کـوی غـمـونـه
چـاسـره چـې نُـور رڼـا دَ مـحـمـد ﷺ ده

زهٔ احـمـد دلتـه کښـې ځـکـه یم خوشحالـه
تـا سـره مـدح وثـنـا دَ مـحـمـد ﷺ ده

★★★★★★

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

هغه خلق دلته کښې غمونه کړي
څوك چې هير قرآن او حديثونه کړي
څوك چې دَ سنت پرواه اُنکړي نن
څوك چې دا ساعت پرواه اُنکړي نن
بيا به په محشر کښې فريادونه کړي
څوك چې هير قرآن او حديثونه کړي
څوك چې شريعت سره وفا نۀ کړي
څوك چې اقتدا دَ مصطفیٰ ﷺ نه کړي
بيا به ئې تباه دا عملونه کړي
څوك چې هير قرآن او حديثونه کړي
څوك چې دَ نبي ﷺ په طريقه نۀ ځي
څوك چې په اُسوۀ حسنه نۀ ځي
دُوی به بيا په جار تول آوازونه کړي
څوك چې هير قرآن او حديثونه کړي
څوك چې دَ شيطان په لاره تلل کوي
څوك چې دَ شيطان سره محفل کوي
دا انسان په سر مصيبتونه کړي
څوك چې هير قرآن او حديثونه کړي
څوك چې دَ اصحابوؓ اقتدا نۀ کړي

څوك چې مصطفىٰ ﷺ سره وفا نه كړي
اے احمده! ځان باندې ظلمونه كړي
څوك چې هير قرأن او حديثونه كړي

نصيحت

دين رانه چرته مونږه چرته لاړو
مونږ دَ شيطان كلي او ور ته لاړو
مونږه دَ خير ښېګړې كار پرېښودو
دَ شيطانانو مونږ ګنډېر ته لاړو
دَ بدعتيانو ملګرتيا كوو مونږ
مونږه ابليس ګمراه رهبر ته لاړو
مونږه توحيد دَ خپل مولىٰ پرېښودو
په دغه وجه مونږ سقر ته لاړو
مونږ دَ چمن نه شو په بل طرف
مونږه ازغو لره تېول كر ته لاړو
مونږه اخلاق دَ محمد ﷺ پرېښودل
مونږ دَ بدترونه بدتر ته لاړو
مونږه تيرو كښې خوشحالى كوله
په دغه وجه هر خطر ته لاړو
احمده! هر څه به دا پاتى شي تېول
كه مونږه يو واري اٰخر ته لاړو

## سنت او بدعت

تـــــهٔ دَ سـنـت نــه نــا اشـنـا ولُـــے شـــوې
بــاغــی لـــه ديــنــه پـــه دُنيـا ولُـــے شـــوې
تـــا دَ ابـلـيـــس ســره دوستـــی کــړې ده
دَ نيـــغـــې لارې نـــه جُـــدا ولُـــے شـــوې
تـــا دَ مشـــرك پـــه لاره تـــلـــل کـــړې دی
تـــهٔ حيـــادار وے بـــې حيـــا ولُـــے شـــوې
تـــا چــې دَ خپـــل نـــه بـغـــاوت کـــړے دے
مـنـکــر دُنيا کښې دَ رښتيا ولُـــے شـــوې
تـــا دَ کـفـــارو مـگـلـگـرتيا کـــړې ده
تـــا خـــو ليـدل کـــړل نــابيــنـا ولُـــے شـــوې
تـــهٔ پـــه دې خپـلـو غتـو سترگـو ړونـد شـــوې
تـــهٔ وفـــا دار وِے بـــې وفـــا ولُـــے شـــوې
تـــا خـــو تـويـــه پـخـــه ويـسـتـلـې وه هـم
تـــهٔ دَ لـعـنـت پـــه لاره بيـــا ولُـــے شـــوې
تـــا دَ نيـکــی نـــه ولُـــے مـخ اړولـــے
تـــهٔ دَ بـــاطـــل ســـره گـــويـــا ولُـــے شـــوې
وائــی احـمـد چـې تـــا وعــده کـــړې وه
دَ حـق ويـنـا نـــه تـــهٔ بـل خـوا ولُـــے شـــوې

★★★★★★★★

## بدعت او سنت

تــهٔ لاړے دَ سـنــت نــه دَ بدعـت پـه طـرف وُلـے
دَ خيــر نــه پــه دُنيــا دَ شـرارت پــه طـرف وُلـے
خپـل ديـن درنـه شـو پـاتـے تـهٔ دَ خيـر پـه لاره نـهٔ ځـے
تــهٔ لاړے دَ رحـمـت نــه دَ لـعـنـت پـه طرف وُلـے
بـاطـل دے کـړهٔ خـوشـحـالـه پـه خپـل کار او پـه ګفتار
روان شـوې دَ رڼـا نــه دَ ظـلـمــت پـه طـرف وُلـے
شيـطـان درنـه خـوشـحـالـه شو پـه شرك او پـه بدعت
عــزت نــه شوې روان تــهٔ دَ ذلـت پـه طـرف وُلـے
مـلـګـرے دَ قـارون شوې پـه دې کـار سره دُنيا کښې
لــه ديـنـه شـوې روان تــهٔ دَ دولـت پـه طرف وُلـے
مـلـګـرے دَ فـرعـون شـوې پـه محشر کښې هر ساعت
روان شــوې دَ مــولــىٰ دَ عـداوت پــه طـرف وُلـے
نـمـرود بـه دے مـلـګـرے پـه محشر شي دَ جهان
روان شـوې دَ شيـطــان دَ اطــاعـت پـه طـرف وُلـے
نـاصـح درتـه احـمـد دے دَ مردان حـقـه ويـنا کـړې
د مـيـنــې نــه روان شـوې دَ نـفـرت پـه طـرف وُلـے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

در دَ افســـــر ﷺ مــــديــــنـــــه
نُـــور مــــنـــوَر مــــديـــنـــــه

هر یو برکت دلته کښي
ده معطَر مدینه
رحم وکرم دلته کښي
در دَ سحر مدینه
غوره تکړه دَ جنت
ښائستهٔ قمر مدینه
رڼا دَ ستوورو يره
رڼا دَ نمر مدینه
مشك وعنبر دَ جهان
یاده اکثر مدینه
ښکلي چمن دَ نبي ﷺ
لعل وګوهر مدینه
غوره له مقام نه
تاج دَ هر سر مدینه
دَ زړهٔ سکون احمده !
زمانه نظر مدینه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

خنګ چي بدن کښي ددي ساه کردار دے
ددي سنت دلته کښي دا کردار دے
خنګ چي ښُکلا دَ هر چمن په ګل وي

داسې بدن کښې دَ حیا کردار دے
څنګ چې بدن بغیر اوبو نۀ پائی
داسې ددین په دې دُنیا کردار دے
څنګ چې ژوندون بې له خوراکه نشته
داسې ددین دلته هر خوا کردار دے
رڼا چې بلَه په جهان کښې شکاری
دغه دَ ټولو انبیاء کردار دے
نشته تیرې دَ جهالت چې دلته
دا دَ سنت دَ مصطفیٰ ﷺ کردار دے
څنګ چې خوشبو بغیر خوشبو نۀ راځي
داسې دَ دین دَ اولیاء کردار دے
څنګ چې اوبو سره هر اور مړ کیږی
په شر کښې دا دَ علماء کردار دے
نن چې په چغو چغو ژاړی شیطان
احمده! دا دَ حق وینا کردار دے

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

رُسوائی په هر مقام د بدعت لویه سزا ده
رُسوائی سحر ماښام دَ بدعت لویه سزا ده
دَ سنت نه لرے والے په دُنیا کښې په هر در
محرومتیا دَ احرام دَ بدعت لویه سزا ده

محرومتیا دَ شریعت نه محرومتیا دَ هدایت نه
داسې وائی خاص وعام دَ بدعت لویه سزا ده
محرومتیا ده دَ جنت نه محرومتیا ده سعادت نه
رُسوائی ده تل مُدام دَ بدعت لویه سزا ده
محرومتیا ده شفاعت نه محرومتیا ده هر نعمت نه
دَ احمد دے دا پیغام دَ بدعت لویه سزا ده

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ملګرتیا ده دَ شیطان دَ بدعت دغه سزا ده
دُښمنی ده دَ رحمٰن دَ بدعت دغه سزا ده
لرے والے دَنبی ﷺ نه ، لرے والے هر ولی نه
رُسوائی دَ ټول جهان دَ بدعت دغه سزا ده
محرومتیا ده هریو خیر نه د دُنیا په هرمقام
په دُنیا دے تش نقصان دَ بدعت دغه سزا ده
نشته نشته په کښې خیر دا دَ شر ده مجموعه
تل نقصان دَ دے دَ ایمان دَ بدعت دغه سزا ده
هر یو نیك ئې دے دُښمن ، نشته دے سره امن
ختموُی هر اطمینان دَ بدعت دغه سزا ده
دا دې ګند په دغه سر ، ګندګی ده دَ هردر
مصیبت دے تش خفګان دَ بدعت دغه سزا ده
دا تیارهٔ دَ ټول عالم ، دَ عرب او دَ عجم

احمد وائی دَ مردان دَ بدعت دغه سزا ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ده سنت یو نُور رنا زهٔ په دے باندې پوهیږم
دَ نبی ﷺ ده هر ادا زهٔ په دې باندې پوهیږم
دغه قُرب دے دَ نبی ﷺ په دُنیا دَ هرولی
ده دَ دین سره وفا زهٔ په دې باندې پوهیږم
دغه لاره دَ جنت دغه لار دَ هدایت
ده دا لار دَ اولیاء زهٔ په دې باندې پوهیږم
ده رضا دَ ربّ اکبر دا خبر دے معتبر
ده نبی ﷺ ده هم رضا زهٔ په دې باندې پوهیږم
دغه ډهال دے دَ بدن هم کمال دے دَ بدن
ده دَ هر بدن ښُکلا زهٔ په دې باندې پوهیږم
دغه حُسن دَ بشر دغه حُسن دَ هر در
داسې وائی علماء زهٔ په دې باندې پوهیږم
دغه عطر دَ عطّار دا گلونه دَ گلزار
اے احمده ! په هر خوا زهٔ په دې باندې پوهیږم

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

محبوب زما دے چې دُنیا کښې دَ هرچا خوښیږی
گل دے دا گل چې په دُنیا کښې په هر خوا خوښیږی
چې ئې دَ حُسن دَ ښُکلا دلته جواب نشته دے

چـي ئـي دَ حُسـن دَ ښُـکلا دلتـه حساب نشتـه دے
دغـه ګل دلتـه پـه دُنیـا کښـي پـه ښُکلا خوښیـږي
محبوب زما دے چي دُنیا کښي دَ هرچا خوښیږي
چـي ئـي دَ حُسـن پـه دُنیـا کښي تماشي کوی تول
چي ئي دَ حُسـن پـه هر خـوا کښي تماشي کوی تول
ګـل دَمـولـیٰ دے هـر طرف تـه پـه دُنیا خـوښیـږي
محبوب زما دے چي دُنیا کښي دَ هرچا خوښیږي
چـي ئـي قـمـر اوبره نـمر پـه تـماشـه بـاندي شو
کلـه ښـکاره چي پـه عـرب کښـي پـه مکه باندي شو
دا حسیـــن ګـل دي جهـــان دَ انبیـــاء خـــوښیـــږي
محبوب زما دے چي دُنیا کښي دَ هرچا خوښیږي
دَ اسمـان ستـوری ورتـه تول پـه تـمـاشه بـاندی شو
دَ جهـان سـتوری ورتـه تول پـه تـمـاشـه بـاندي شو
احـمـده ! ګـل دغــه ښـائستـهٔ دَ اولیـاء خـوښیـږي
محبوب زما دے چي دُنیا کښي دَ هرچا خوښیږي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ هـــر خیـــر ذریـعـــه مـحـمـد عـربـــی ﷺ
دَ اخـــر ده تـــوښـــه مـحـمـد عـربـــی ﷺ
هـــــر چـــــا ده فـــــلاح ، دا فـــــلاح دَ ارواح
دَ مـولـــیٰ فیـصـلـــه ، مـحـمـد عـربـــی ﷺ

دَ هر چا نور رڼا دَ هر چا ده بُشکلا
دا اُسوه حسنه محمد عربی ﷺ
دَ غریب مددګار، مددګار دَ یتیم
بیا دَ علم چینه محمد عربی ﷺ
دَ اسلام ئې مذهب نور تمام ئې مذهب
دَ مؤمن ائینه، محمد عربی ﷺ
یو سراج دے منیر هم بشیر او نذیر
دَ دُنیا ده مزه، محمد عربی ﷺ
زۀ احمد ورپسے، ترابد ورپسے
دَ رڼا یو ډیوه محمد عربی ﷺ

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نُور دَ محمد ﷺ دے بیان شوي کتابونو کښې
دغه شان راغلے دَ قرآن په ایاتونو کښې
ربَ ئې ذکر کړے په تورات کښې دَ دُنیا دَ در
دغه شان یاد شوې عبادات کښې دَ دُنیا دَ در
خلقو دے راوستے دَ دُنیا په بیانونو کښې
نُور دَ محمد ﷺ دے بیان شوي کتابونو کښې
ذکر ئې راغلے په زبور ښکلی کتاب کښې دے
ذکر ئې راغلے دَ دُنیا ښکلی هر باب کښې دے
دغه شان یاد شوې په دې زمکه اسمانونو کښې

نُــور دَ مــحـمـد ﷺ دے بیان شوي کتـابـونـو کښې
ذکــرئـي راغـلــے پـه انجیـل کښې دَ عیسـیٰ ؑ سره
زۀ احــمـد ختــمـو مـــه دا بیـــان پــه دي وینـا سره
ذکــرئــي راغـلـے دَ نیـکـانو محفلونو کښـې
نُــور دَ مـحـمـد ﷺ دے بیان شوي کتـابـونـو کښې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ذکـــر دَ رسـول الـلّـــه ﷺ راغلـے کتـابـونـو کښـې
دغـــه شـان راغـلـے دَ قــرآن پــه تـفسیرونو کښې
هــــر بشـــر گــواه پـــه دي خبـره دَ دُنیـــا دے نـن
هـــر افســـر گــواه پـــه دي خبـره دَ دُنیـــا دے نـن
مـــا دي اوریـدلـــي دغــه ذکــر جمـــاتونو کښـې
ذکـــر دَ رسـول الـلّـــه ﷺ راغلـے کتـابـونـو کښـې
ذکـــر دغـــه ذکـر پـــه اعلاؤ کښـې اعلـیٰ دے ډیـر
خـورم قسـم دا ذکــر پــس لــه ذکره دَ مولیٰ دے ډیر
داســـي اوریـدلـے دا بیـــان مـي تـقـریـرونو کښـې
ذکـــر دَ رسـول الـلّـــه ﷺ راغلـے کتـابـونـو کښـې
دغــــه دي سبـــب دَ هـــر جـنـــت دا عـقـیـده لــرم
دغــــه دي سبـــب دَ هـــر نـعــمــت دا عـقـیـده لــرم
خـورم قسـم اعلـیٰ دے دا نـعـمـت پـه نعمتونو کښې
ذکـــر دَ رسـول الـلّـــه ﷺ راغلـے کتـابـونـو کښـې

دغـه دَ مـولـىٰ هـم دَ رضـا سبـب ګـڼلے شـي
دغـه دَ رضـا دَ مـصـطـفىٰ ﷺ سبب ګـڼلے شـي
مـا احـمـد ئـي ذکـر دلتـه کـړے په شعـرونو کښـي
ذکـر دَ رسـول اللّٰـه ﷺ راغـلے کتـابـونو کښـي

نعتِ مصطفىٰ ﷺ

زهٔ يـم عـاشق دَ پيـغـمبـر ﷺ ځـکـه نعتـونـه ليکم
هر ځائے کښي هرخوا زهٔ په هردر ځکه نعتونه ليکم
دا کـار دُنيـا کښـي زهٔ قسـم دے عبـادت ګـڼمـه
دا کـار دُنيـا کښـي دَ نبـي ﷺ زهٔ مـحبت ګـڼمـه
ده مشـغـولتيـا زمـا اکثر ځـکـه نعتـونـه ليـکم
زهٔ يـم عـاشق دَ پيـغـمبـر ﷺ ځـکـه نعتـونـه ليکم
دا روحـانـي غـذا زمـا پـه دي دُنيـا بـانـدي ده
جسـمـانـي غـذا زمـا پـه دي دُنيـا بـانـدي ده
بـغيـر لـه دي يـمـه نهـر ځـکـه نعتـونـه ليـکم
زهٔ يـم عـاشق دَ پيـغـمبـر ﷺ ځـکـه نعتـونـه ليکم
دا پـه دُنيـا کښـي اطـميـنـان دے هر بشـر دَ پـاره
دا پـه هـرخـوا کښي اطـميـنـان دے دَ هـر در دَ پـاره
دا دي عـلاج دَ هـر ځيـګـر ځـکـه نعتـونـه ليـکم
زهٔ يـم عـاشق دَ پيـغـمبـر ﷺ ځـکـه نعتـونـه ليکم
دا دے باعـث دَ لـوئي ثـواب پـه دي جهان کښـي مالـه

وائي احمد دا دے عزت پـه هر مـكان كښي تالـه

زۀ يـم لــه دي نــه ښــۀ خبر څـكـه نعتـونـه ليـكم

زۀ يـم عـاشق دَ پيـغـمبـر ﷺ څـكـه نعتـونـه ليكم

## دُعا (دَ حقيقي ميني دَ پاره)

ربــه درنــه غــواړمــه دَ سيّـدالــوری ﷺ ميـنــه

راكـړے رالـه راكـړے پـه دُنيا كښي دَ ريښتيا مينه

ميـنــه دروغــژنــه درنــه نــۀ غــواړمــه ربّــه زه

زۀ درنـه بــس غـواړمـه دُنيـا كښـي تـل صفا مينه

ميـنــه حـقيـقـي غـواړمــه زۀ مـجـازي نــۀ غـواړم

تــانــه سـوال كـوُمــه تـانــه غـواړمــه روا ميـنــه

ميـنــه دَ بـدشــكـلـو دَ كـفــارو درنــه نــۀ غـواړم

تــانــه خـو بـــس غـواړم پــه دُنيـا دَ اوليـاء ميـنــه

ميـنــه درنــه نــۀ غواړم دَ سپو او خـنـزيـرانو زۀ

نــۀ غـواړم لتــانــه پـــه دُنيـا دَ بـي وفــا ميـنــه

يـو شـان چـي ظـاهـر او بـاطن نـۀ وي پـه جهان كله

هيـڅ كـلــه ښــۀ نـۀ ده پـه دُنيا كښي دَ ريا مينــه

يـو چـي كړي دا زړونـه، نفرتونه چي پرے لرے شي

دا احــمـد غـوښتـلي ربّـه ! ستـانــه پـه دُنيا ميـنــه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

پـه سنـت سره دُنيا كښي ښۀ ښائستۀ دا زندگی وي

شريعت چې په کښې نۀوي هرطرف ته بدرنګي وي
دَګلونو دا يو هار دے چې انسان ئې کړي په غاړه
په دې هار سره دُنيا کښې هر محفل کښې تازګي وي
سادګي ده هر سنت کښې عاجزي ده هر سنت کښې
عقل مند دے په دُنيا کښې چې په چا کښې سادګي وي
دَقرآن سره سنت، نُور دے نُور دَشريعت
کاميابي ده په جهان چې کامله بندګي وي
په غرور کښې عزت نشته دَدُنيا دَدر ذلت دے
عزت مند دے په جهان چې په چا کښې عاجزي وي
پاك نبي ﷺ راضي راضي کړه احمد وائي مختصر
ربَ راضي به وي هغه نۀ چې راضي ترينه نبي ﷺ وي

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

خاورې خوشبوداري مدينه کښې کور په کور کښې دي
سيَدالوریٰ ﷺ سره روضه کښې کور په کور کښې دي
خاورې خوشبوداري دادَ مشك اودَ عنبرو دي
خاورې خوشبوداري بيش قيمته له سرۀ وزر دي
دادَ پاك رسول الله ﷺ کوڅه کښې کور په کور کښې دي
خاورې خوشبوداري مدينه کښې کور په کور کښې دي
خاورې خوشبوداري قيمتي له هرګوهر نه دي
خاورې خوشبوداري قيمتي له هر حجر نه دي

دا دَ مدینې هره حصه کښې کور په کور کښې دي
خاورې خوشبوداري مدینه کښې کور په کور کښې دي
دې سره نسبت دے دَ حضرت خیرالابرار نبي ﷺ
دې سره نسبت دے دَ نبیانو دَ سردار نبي ﷺ
دا دَ مدینې په باغیچه کښې کور په کور کښې دي
خاورې خوشبوداري مدینه کښې کور په کور کښې دي
تا دے بیان کړے د دې خاورې لوئي مقام صفت
تا ئې بیان کړے اے احمده! ناتمام صفت
دا دَ مدینې په محله کښې کور په کور کښې دي
خاورې خوشبوداري مدینه کښې کور په کور کښې دي

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نُور دے نُور او هم بشر
خوږ زمونږه پیغمبر ﷺ
نُور دے نُور دَ کائنات
نُور دے نُور دَ کُل جهات
نور دے نُور تول سراسر
خوږ زمونږه پیغمبر ﷺ
نُور دے نُور ددې جهان
نُور دے نُور دَ لامکان
داسې یاد دے په هر در

خوږ زمونږ پيغمبرﷺ
نُور دے نُور دَ ټول عرب
نُور دے دَ نُور دَ هر مذهب
نُور دے نُور دَ هر يو شب
داسې وائى هر رهبر
خوږ زمونږ پيغمبرﷺ
نُور دے نُور دَ هر قدم
دَ عرب او دَ عجم
نُور دے نُور دَ لر او بر
خوږ زمونږ پيغمبرﷺ
نور دے نور دَ ټولو ستورو
نُور دے نُور دَ سپينو تورو
نُور دے نُور دَ هر نظر
خوږ زمونږ پيغمبرﷺ
نور دے نُور هم دَ احمد
نُور دے نُور دَ نيك او بد
نُور دے نُور دَ پاس قمر
خوږ زمونږ پيغمبرﷺ

دَ سنتو اهميت

نُور زمونږ دَ يسين ﷺ دے هر سنت

دَ هــر چــا دَ زړۀ تسـکیــن دے هــر سـنـت
دَ هــرچــا غــمــونـــه دي سـره ختـمیــږي
عبـــادت بـــۀ بهتـــریـــن دے هـــر سـنـــت
دَ هـــرچـــا دَ اٰخــرت یـــوه تــوښـــه ده
نُـــور دَ ربَ الــعٰــلـمیــن دے هـــر سـنـــت
پـــه قــراٰن سـره ښـائستـــۀ زمونـږ مذهـب دے
دَ قـــراٰن دَ پـــاره ذکـــر پـــه تـفسیـــر دے
رالیــــږلـــے ربَ متیـــن دے هـــر سـنـــت
طـــریـــقـــه ده خـــوشبــوداره دَ نبـــی ﷺ دا
هـــریـــو امـــر دَ امیـــن دے هـــر سـنـــت
دَ دُنیـــا دَ هـــر چـــمـــن ښـُـکـــلا پـــه دي ده
لــکـــه ګــل غــوندي حسیـن دے هــر سـنـت
اے احـــمـــد عـــلـــی رښـــا دَ هـــدایـــت ده
پــوره کـــړے زمــونـــږ دیــن دے هـــر سـنـــت

دَ بدعت مذمت

زړۀ کـــړه زړۀ دَ بـــدعـــت دَ ګـــنـد نـــه پـــاك
زړۀ کـــړه زړۀ دَ شیـــطـــانـــت دَ ګـــنـد نـــه پـــاك
پـــاك کـــړه پـــاك لــــه هـــرحســـده دغـــه زړۀ
زړۀ کـــړه زړۀ دَ هـــر لـــعـــنـــت دَ ګـــند نـــه پـــاك
زړۀ کـــړه زړۀ ښـــکـــلـــے حسیـــن پـــه مـحبـت

زړۀ کړه زړۀ دَ هر نفرت دَ ګند نه پاك
زړۀ کړه زړۀ ښکلے ښائسته ۀ په شریعت
زړۀ کړه زړۀ دَ عداوت دَ ګند نه پاك
زړۀ کړه زړۀ دَ هر یو خیر په کار ښائسته ۀ
زړۀ کړه زړۀ دَ معصیت دَ ګند نه پاك
زړۀ کړه زړۀ ښکلے ښائسته په نور توحید
زړۀ کړه زړۀ دَ شرك ظلمت دَ ګند نه پاك
زړۀ کړه زړۀ دغه آباد په تلاوت
زړۀ کړه زړۀ دَ ضلالت دَ ګند نه پاك
زړۀ کړه احمده! هر ځائے دَ تورتم نه
زړۀ کړه زړۀ دَ هر غفلت دَ ګند نه پاك

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مدینه کور دَ اطمینان ځائے دے
دا دَ نبی آخرزمان ﷺ ځائے دے
دا دَ اصحابوؓ دَ نبی ﷺ کلے دے
دا په اصحابوؓ ښۀ ښائسته ۀ ښکلے دے
دا په دُنیا کښې عالیشان ځائے دے
دا دَ نبی آخرزمان ﷺ ځائے دے
دغه مسکن دے هم دَ آل دَ نبی ﷺ
دغه چمن دے هم دَ آل دَ نبی ﷺ

دا دَ خوشبو دَ نُور عرفان ځائے دے

دا دَ نبی آخرزمان ﷺ ځائے دے

دلته بهار دَ شریعت پروت دے

دلته بهار دَ هدایت پروت دے

دا دَ نبیانو دَ سلطان ﷺ ځائے دے

دا دَ نبی آخرزمان ﷺ ځائے دے

دلته ساکن دی تهول نیکان خلق

احمده! ښهٔ ددې جهان خلق

دَ برکتونو دَ قرآن ځائے دے

دا دَ نبی آخرزمان ﷺ ځائے دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

تهٔ ئې دوست دَ پاك سبحان یو ډیوه ئې په تیرو کښې

نُور رڼا ئې دَ انسان یو ډیوه ئې په تیروکښې

نُور سراج ئې دَبشر نُور سراج ئې دَ هردر

نُور رڼا ئې دَ جهان یو ډیوه ئې په تیرو کښې

تهٔ بشیر ئې تهٔ نذیر ئې تهٔ ددې قرآن تفسیر ئې

نور رڼا ئې دَ عرفان یو ډیوه ئې په تیرو کښې

تهٔ هادی ئې هدایت ئې ترجمان دَ سعادت ئې

نُور ئې نُور دَ هر مکان یو ډیوه ئې په تیرو کښې

نُور دے ستا له نُوره خور په دُنیا کښې په هر لور

نُور ئي نور دَ هر اسمان يو ډيوه ئي په تيرو کښي

نُور رښائي دَ احمد داسي وائي نيك او بد

نور دے نُور ستا هر بيان يو ډيوه ئي په تيرو کښي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دا څنګ دے مسلمان چي مصطفیٰ ﷺ نهٔ پيژني

مقام دَ مصطفیٰ ﷺ چي په دُنيا نهٔ پيژني

دا څنګ دے مسلمان چي دَ قرآن نه ناخبر دے

سنت دَ محمد رسول الله ﷺ نهٔ پيژني

دا څنګه مسلمان دے چي اسلام نه ناخبر دے

دُنيا کښي چي روا او ناروا نهٔ پيژني

دا څنګه مسلمان دے چي په مينه نهٔ پوهيږي

دُښمن په دي جهان او خپل اشنا نهٔ پيژني

دا څنګه مسلمان دے شيطان پسے کړي تلل

دُنيا کښي دَ مولیٰ کار دَ رضا نهٔ پيژني

دا څنګه مسلمان دے چي عزت نه ناخبر دے

دُنيا کښي عزت داره او رُسوا نهٔ پيژني

دا څنګه مسلمان دے چي تاوان نهٔ پيژني

دُنيا کښي دَ نادان سره دانا نهٔ پيژني

دا څنګه مسلمان دے چي دُنيا سره کړي مينه

کارونه دَ ګناه او دَ تقویٰ نهٔ پيژني

دا څنګه مسلمان دے چې دَ حق نه ناخبر دے
احمدعلی دا ځکه ستا وينا نهٔ پيژنی

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ړاندهٔ خلق دُنيا کښې مصطفیٰ ﷺ نهٔ پيژنی
کارونه دَ مولیٰ به دَ رضا نهٔ پيژنی
سنت سره چې مينه تعلق نهٔ وی دَ چا
هغه په حقيقت کښې نُوررنړا نهٔ پيژنی
سنت نه ناخبره چې دَ سيدالابرار ﷺ وی
هغه ددې جهان خپل رهنما نهٔ پيژنی
سنت نه ناخبره چې وی دلته په جهان
هغه دَ کاميابی نفع سودا نهٔ پيژنی
سنت نه خبره چې دَ خاتم الرُّسل وی
هغه دَ زړهٔ سکون دَ زړهٔ دوا نه پيژنی
محروم به له هرخيره په دُنيا وی هرساعت
احمدعلی چې ستا دغه وينا نهٔ پيژنی

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دغه ژوند دے رب راکړے دَ اسلام دَ پاره
دا اطاعت له دَ نبی خيرالانام ﷺ دَ پاره
لمحه لمحه ئې ده راکړې شريعت دَ پاره
لمحه لمحه ئې ده راکړے نُور سنت دَ پاره

دَ پاك رسول ﷺ دَ هريو څيز دَ احترام دَ پاره
دغه ژوند دے رب راکړے دَ اسلام دَ پاره
لمحه لمحه ئې ده راکړے قيمتي دغه ده
لمحه لمحه ئې چې راکړے دافاني دغه ده
دَ مصطفیٰ ﷺ دَ در دَ پاره دَ غلام دَ پاره
دغه ژوند دے رب راکړے دَ اسلام دَ پاره
لمحه لمحه ئې ده راکړے دَ دُنيا د در
لمحه لمحه ئې ده راکړے نُور رنړا دَ در
دَ پاك نبي ﷺ دَ لار دَ پاره، ښه کلام دَ پاره
دغه ژوند دے رب راکړے دَ اسلام دَ پاره
لمحه لمحه ده دا راکړے رب خدمت دَ پاره
لمحه لمحه ئې ده راکړے عبادت دَ پاره
دغه ژوندون دے امتحان دَ خاص وعام دَ پاره
دغه ژوند دے رب راکړے دَ اسلام دَ پاره

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

هر سحر وايه سلام ماز يګر وايه سلام
بيا درود وايه درود په نبي خيرالانام ﷺ
وايه وايه دا درود، دا دے حکم دَ ودود
ښه په مينه محبت وايه وايه دا تمام
هر سحر وايه سلام ماز يګر وايه سلام

درود دے لوئیے سعادت ، دا عظیم دے عبادت
وائی وائی داسي تول په دُنیا کښې خاص وعام
هر سحر وایه سلام مازیګر وایه سلام
دَ دُنیا ښکلا ده دا ، دَ هر چا ښکلا ده دا
داسي یاد دے په هرخوا لوئي لري دلته مقام
هر سحر وایه سلام مازیګر وایه سلام
دا دے تول سکون سکون ، دا سکون دَ تول ژوندون
داسي یاد دے په دُنیا هر سحر او هر ماښام
هر سحر وایه سلام مازیګر وایه سلام
دا سکون دَ تول اُمت ، اے احمده ! هر ساعت
ښهٔ بهتر دے دا کلام ، مختصر دے دا کلام
هر سحر وایه سلام مازیګر وایه سلام

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

چا چي دَ نبیانو مرسلانو یار ﷺ لیدلے دے
هغهٔ په دي سترګو حقیقي بهار لیدلے دے
هغه په جهان کښي دَ ایمان مزه موندلي ده
هغهٔ ددي دین په دي جهان مزه موندلي ده
هغهٔ مهربانه حقیقي غمخوار ﷺ لیدلے دے
هغهٔ دَ اسلام او شریعت مزه اغستي ده
هغهٔ په دُنیا دَ محبت مزه اغستي ده

چـا چـي محـمـد خیـر الابـرار ﷺ یو وار لیدلے دے
هـغـهٔ پـه دي ستـرګـو حـقیـقی بهـار لیدلے دے
چـا چـي ادا ګـانـي دَ نبـی ﷺ دلتـه لیـدلـی دی
چـا چـي رنـا ګـانـي دَ نبـی ﷺ دلتـه لیـدلـی دی
راز دَ شـریـعـت ئـي دَ دُنیـا پـه دار لیـدلے دے
هـغـهٔ پـه دي ستـرګـو حـقیـقی بهـار لیدلے دے
چـا چـي اے احـمـده ! ددي در مـزه اخستـي ده
چـا چـي پـه دُنیـا دَ مشك عـنبـر مزه اخستي ده
دهٔ په حـقیـقـت کښي هاشمی سرکار ﷺ لیدلے دے
هـغـهٔ پـه دي ستـرګـو حـقیـقی بهـار لیدلے دے

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

چـا چـي دَ نبیـانـو دَ سـردار ﷺ مـزار لیدلے دے
دهٔ پـه حـقیـقـت کښي معطّر ګلزار لیـدلے دے
چـا چـي مـدیـنـه منوره ښائستـهٔ لیدلـي ده
چـاچي دَ رسول اللّـه ﷺ ښائستـهٔ کوڅه لیدلي ده
دهٔ پـه حـقیـقـت کښي دَ ګـلونـو دار لیدلے دے
دهٔ پـه حـقیـقـت کښي معطّر ګلزار لیـدلے دے
چـا ښـکـلـی ګـلـونـه دغـه در کښي چي لیدلـی دی
چـا ښـکلی بـاغـونـه دغـه در کښي چي لیدلی دی
ده پـه دي دُنیـا کښـي مـجسّم بهـار لیدلے دے

دۀ په حقيقت کښې معطّر گلزار ليدلے دے

چا ښکلے فضا چې مدينه کښې ده ليدلې نن

چا ښکلے ښُکلا چې مدينه کښې ده ليدلې نن

ښکلے په دُنيا کښې ئې دَ زړۀ قرار ليدلے دے

دۀ په حقيقت کښې معطّر گلزار ليدلے دے

چا چې دے ليدلے په دُنيا دغه عالي مقام

وائي احمد وائي دا ليدل دي دَ ماهِ تمام

چا چې په دې سترگو دلته دغه ښار ليدلے دے

دۀ په حقيقت کښې معطّر گلزار ليدلے دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دا هر څۀ دلته پيدا دي ستا له مخه

پيدا شوي په دُنيا دي ستا له مخه

دَ آدمؑ نه شورو شوے مُرسلان

پيدا دغه انبياء دي ستا له مخه

دا بې شميره په جهان چې دي وليان

پيدا دغه اولياء دي ستا له مخه

دغه زمکې بره غټ غټ آسمانونه

پيدا کړي ربّ مولیٰ دي ستا له مخه

ونې بوټې دَ جهان ددغې در

پيدا هر څۀ په هر خوا دي ستا له مخه

غـــتې غـــتې غـــرونـــه دریـــابـــونـــه دَ جهـــان
پیـــدا شـــوي هـــر څـــهٔ دا دي ستـــا لـــه مخـــه
مـــوســـمـــونـــه دَ جهـــان ښُـــکـــلـــی څـــلـــور
پیـدا هـــر څـــهٔ پـــه صـحـــرا دي ستـــا لـــه مخـــه
دروغـــژن نـــهٔ یـــم ریښتیـــا وایـــم احـــمـــد
پیـدا هـــر څـــهٔ پـــه ریښتیـــا دي ستـــا لـــه مخـــه

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

میـنـــه خـو ښـهٔ نـهٔ ده دَ بـدعـت سره پـه زړهٔ کښـي
میـنـــه اُوســـاتـــه دَ هـرسـنـت سـره پـــه زړهٔ کښـي
میـنـــه دَ اصـحـابـو ؓ سـره اُوسـاتـه پـه زړهٔ کښـي
اُوسـاتـه دَ میـنـي خـوشبـوئـی پـه خپلـه خُلـهٔ کښـي
میـنـــه اُوســـاتـــه دَ شـریـعـت سـره پـــه زړهٔ کښـي
میـنـــه اُوســـاتـــه دَ هـرسـنـت سـره پـــه زړهٔ کښـي
میـنـــه اُوســـاتـــه دغـي قـرآن سـره پـــه زړهٔ کښـي
میـنـــه اُوســـاتـــه دَ حق بیـان سـره پـــه زړهٔ کښـي
میـنـه اُوسـاتـه دَ پـاك حضرت ﷺ سره پـه زړهٔ کښي
میـنـــه اُوســـاتـــه دَ هـرسـنـت سـره پـــه زړهٔ کښـي
میـنـــه اُوســـاتـــه دَ هـریـو کـار سـره دَ خیـر
میـنـــه اُوســـاتـــه دَ هـردلـدار سـره دَ خیـر
میـنـــه اُوســـاتـــه دَ عبـادت سـره پـــه زړهٔ کښـي

مینه اُوساته دَ هرسنت سره په زړهٔ کښې
مینه اُوساته دَ هر غریب سره دُنیا کښې
مینه اُوساته دَ خوش نصیب سره دُنیا کښې
مینه اُوساته دَ ښهٔ صفت سره په زړهٔ کښې
مینه اُوساته دَ هرسنت سره په زړهٔ کښې
مینه اُوساته دَ هر یتیم سره په زړهٔ کښې
مینه اُوساته دَ هر کریم سره په زړهٔ کښې
مینه اُوساته دَ شرافت سره په زړهٔ کښې
مینه اُوساته دَ هرسنت سره په زړهٔ کښې
مینه اُوساته تهٔ دَ عقبیٰ سره په زړهٔ کښې
مینه اُوساته تهٔ دَ مولیٰ سره په زړهٔ کښې
مینه اُوساته دَ اٰخرت سره په زړهٔ کښې
مینه اُوساته دَ هرسنت سره په زړهٔ کښې
مینه اُوساته احمده ! ښهٔ سره دُنیا کښې
غواړه دغه مینه دَ اللّٰه نه په دُعا کښې
مینه اُوساته دَ نصیحت سره په زړهٔ کښې
مینه اُوساته دَ هرسنت سره په زړهٔ کښې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

هریو ښار نه ښکلے ده ښائسته ده مبارکه ده
ښکلے په دُنیا کښې مدینه ده مبارکه ده

هر يوه خوشبو په دغه در کښې ستا دَ پاره ده
هر يوه خوشبو په لر او بر کښې ستا دَ پاره ده
دا دَ مدينې په هر حصه ده مبارکه ده
ښکلې په دُنيا کښې مدينه ده مبارکه ده
هر يو امّتی دَ محمد ﷺ ئې ديدنونه کړي
هر عالم ولی ئې په دُنيا کښې زيارتونه کړي
ورځ دَ مدينې که هره شپه ده مبارکه ده
ښکلې په دُنيا کښې مدينه ده مبارکه ده
هر يو دَ نبی ﷺ عاشق ئې دلته ديدنونه کړي
هر دَ هاشمی ﷺ عاشق ئې دلته ديدنونه کړي
دغه خوشبوداره ګلدسته ده مبارکه ده
ښکلې په دُنيا کښې مدينه ده مبارکه ده
ځی هم دغه ته در عجميان او عربيان خلق
اے احمده ! ځی ورته هر ځائے نه دَ جهان خلق
ښکلې د دې در هر تذکره ده مبارکه ده
ښکلې په دُنيا کښې مدينه ده مبارکه ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

عاشق يم په نبی ﷺ ځکه نعتونه جوړوم
خوارۀ خوارۀ له دې نه اُميدونه جوړوم
عاشق په محمد ﷺ يمه ګواه مې دا سحر دے

عاشق په محمد ﷺ يمه ګواه مي دا بشر دے

نعتونه جوړومه زۀ شعرونه جوړوم

خوارۀ خوارۀ له دي نه اُميدونه جوړوم

ګواه زما په مينه باندي هر مکان دے

ګواه زما په مينه باندي بره دا آسمان دے

په دي سره ددغه دريادونه جوړوم

خوارۀ خوارۀ له دي نه اُميدونه جوړوم

شعرونه ځکه وايمه نعتونه ځکه وايم

په دي سره دُنيا کښي زۀ قسم دے دلته پايئم

حرفونه يو ځائے کومه زه لفظونه جوړوم

خوارۀ خوارۀ له دي نه اُميدونه جوړوم

ښائسته ښکلي صفات ئي دي ګلونه دَ جهان

احمد علي ښائسته دي دا لعلونه دَ جهان

په دي سره دَ ژوند دغه وختونه جوړوم

خوارۀ خوارۀ له دي نه اُميدونه جوړوم

## نعتِ مصطفٰی ﷺ

تا چي دَ سنت محل بدعت سره تيول وران کړۀ

ځان له دے تباه دغه دُنيا کښي خپل ايمان کړۀ

تا چي دَ سنت محل په زمکه راګزار کړۀ

تا چي دَ سنت محل نه ځان دلته وزګار کړۀ

تـا ملـګرے ځـان پـه دي دنيـا دَ هرشيطـان کړۀ

ځـان لـه دے تباه دغـه دُنيـا کښي خپل ايمان کړۀ

تـا چـي دَوفـا پـه ځـائے سنت سره جفـا اُوکړه

تـا چي پـه سنـت پسي دُنيا کښي نن خندا اُوکړه

ځـان لـه دے تبـاه دَ اٰخـرت هـر ګلستـان کـړۀ

ځـان لـه دے تباه دغـه دُنيـا کښي خپل ايمان کړۀ

تـا چي پـه دُنيـا کښي دَ سنت مخالفت اُوکړه

تـا چـي پـه دُنيـا دَ شـريعـت مخـالفـت اُوکـړۀ

ځـان لـه دے دُشمن پروردیګار دَ هر اسمان کړه

ځـان لـه دے تباه دغـه دُنيـا کښي خپل ايمان کړۀ

تـا چـي ځـان مـحـرومـه دَ هـر نُور نـه دَ جهان کړلو

تـا چـي ځـان مـحـرومـه پـه دُنيا کښي دَ قران کړلو

تـا چـي ځـان مـلـګرے دَ قـارون او دَ هـامـان کړۀ

ځـان لـه دے تباه دغـه دُنيـا کښي خپل ايمان کړۀ

تـا چـي ځـان مـحـرومـه دَ اسلام دَ شريعت نـه کړه

تـا چـي ځـان مـحـرومـه پـه دوزخ دَ هرجنت نـه کړه

ځـان دے نـاغـرضـه چـي دَ حق پـه دي بيان کـړه

ځـان لـه دے تباه دغـه دُنيـا کښي خپل ايمان کړۀ

سترګي چي دے پټي ددُنيا پـه دي رښتيا کړے تا

سترګي چي دے پټي دَ احمد پـه دي وينا کړے تا

ځـان لـــه دے تبـاه دغــه ژونـدون ددي جهـان کـړه
ځـان لـه دے تبـاه دغـه دُنیـا کښـي خپل ایمان کړۀ

مینه محبت

زۀ ســاتــمـــه میـنــه دَ قــرأن او دَ ســنــت ســره
نــۀ ســاتــمــه میـنــه دَ شیــطـان او دَ بـدعـت سره
زۀ ســاتــمــه میـنــه دَ مـولــیٰ غـنـی اکبـر سـره
نــۀ ســاتــمــه میـنــه پـه دُنیـا کښـي زۀ دَ شر سـره
زۀ ساعـت سـاتـمـه مـحـمـد نبی حضرت ﷺ سره
زۀ ســاتــمـــه میـنــه دَ قــرأن او دَ ســنــت ســره
زۀ ســاتــمــه میـنــه دَ مـولــیٰ هـریو فـرمـان سره
نــۀ ســاتــمــه میـنـه زۀ یـو کـار کښـي شیـطان سره
زۀ ســاتــمــه میـنــه دَ اسلام ښــۀ عـمـارت ســره
زۀ ســاتــمـــه میـنــه دَ قــرأن او دَ ســنــت ســره
زۀ ســاتــمـــه میـنــه دَ هـر خیـر او دَ فـلاح ســره
نــۀ ســاتــمــه میـنـه عـداوت کښـي دَ اصـلاح سره
تـل ســاتــمــه میـنــه زۀ کـامـلـه شـریعـت سره
زۀ ســاتــمـــه میـنــه دَ قــرأن او دَ ســنــت ســره
زۀ ســاتــمـــه میـنـــه روژه دار او مــونـځ ګـزار ســره
نــۀ ســاتــمــه میـنــه پـه دُنیـا کښـي دَ اشرار سره
زۀ ســاتــمــه میـنــه دَ اخـلاص هـر عبـادت ســره

زۀ ساتـمـه مينـه دَ قـرآن او دَ سـنـت سـره
زۀ ساتـمـه مينـه احمد وائى هر نبى ﷺ سره
زۀ ساتـمـه مينـه دَ رسول ﷺ هر اُمتى سره
زۀ ساتـمـه مينـه دَ رسول ﷺ عالى نسبت سره
زۀ ساتـمـه مينـه دَ قـرآن او دَ سـنـت سـره

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

څوك ساتى چې مينـه دَ قرآن او دَ سنت سره
نۀ ساتى بـه مينـه هغـه هيڅ كله بدعت سره
نـه ساتى بـه مينـه دَ شرابو نـه دَ سود سره
نـه ساتى بـه مينـه دَ شيطان ابليس مردود سره
نـه ساتى بـه مينـه دَ شيطان دَ شيطانت سره
څوك ساتى چې مينـه دَ قرآن او دَ سنت سره
نۀ ساتى بـه مينـه دَ مشرك غلط انسان سره
نـه ساتى بـه مينـه پـه دُنيا غلط بيان سره
نـه ساتى بـه مينـه پـه دُنيا كښې دَ ظلمت سره
څوك ساتى چې مينـه دَ قرآن او دَ سنت سره
نۀ ساتى بـه مينـه پـه ژوندون كښې دَ ظالم سره
تـل ساتى بـه مينـه پـه دُنيا كښې دَعالم سره
نۀ ساتى بـه مينـه دَ ريا دَ عبادت سره
څوك ساتى چې مينـه دَ قرآن او دَ سنت سره

نـهٔ سـاتـی بـه مینـه دَ حرام سره دُنیـا کښې تـل
نـهٔ سـاتـی بـه مینـه دَ بدنام سره دُنیا کښې تـل
نـهٔ سـاتـی بـه مینـه دَ چغلـۍ او د غیبت سره
څـوك سـاتـی چې مینـه دَ قرآن او دَ سنت سره
ښـکـلـے بـه اخلاق ئې پـه دُنیا ددغې دروی تـول
نُـور بـه پـه دُنیـا کښې دَ دُنیـا دَ هر نظروی تـول
اے احـمـده ! نـهٔ سـاتـی بـه مینـه ضلالت سره
څـوك سـاتـی چې مینـه دَ قرآن او دَ سنت سره

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زهٔ پـه رب اکبـر بـانـدې مـئین یـمـه
زهٔ خیـر البشـر ﷺ بـانـدې مـئین یـمـه
زهٔ دَ پـاك الـلّـه ښـائستـهٔ کـلام بـانـدې
زهٔ دَ مـصـطـفـیٰ ﷺ ښـکـلـی پیـغـام بـانـدې
هـریـو لـعـل گـوهـر بـانـدې مـئین یـمـه
زهٔ خیـر البشـر ﷺ بـانـدې مـئین یـمـه
زهٔ دَ مـصـطـفـیٰ ﷺ پـه ښـکـلـی دین بـانـدې
زهٔ پـه هـریـو دین کښې بهتـرین بـانـدې
هـرځـائـے دې سـحـر بـانـدې مـئین یـمـه
زهٔ خیـر البشـر ﷺ بـانـدې مـئین یـمـه
زاربـه تـریـنـه زار دا خپـل بـدن کـرمـه

زار يــــه تــريــنــــه زار زۀ خپــل وطـن کـرمـــه
زۀ پـــــه دي دلبــر بـــانــدې مـــئـين يـمــــه
زۀ خيــر البشـــر ﷺ بـــانـدې مـــئـيـن يـمـــه
زۀ لـــــه دغـــي درڏ هـــر قـــدم نـــــه شـم
زۀ احـــمـــد قـــربـــان ددې حــرم نـــــه شـم
زۀ پـــه دغـــي نـمــر بـــانـدې مـئـين يـمـه
زۀ خيـــر البشــر ﷺ بـــانـدې مـــئـيـن يـمـــه

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زۀ دَ مــصـطــفـــیٰ ﷺ پـــه لار روان يـمـــه
دغـــــه شـــان تـــابـع زۀ دَ قـــرآن يـمـــه
زۀ دَ مــصـطــفـــیٰ ﷺ پـــه لاره تـلـل کـوُم
کـــار دَ مـــصـطـفـــیٰ ﷺ دَ رضـــا تــل کـوُم
زۀ پـــه دي صـــفـــت ســره هـــر آن يـمـــه
زۀ دَ مــصـطــفـــیٰ ﷺ پـــه لار روان يـمـــه
کـــار دَ مـصـطـفـــیٰ ﷺ دَ خــوښــي کـومـــه زۀ
کـــار دَ مـجتبـــیٰ ﷺ د خـــوښــي کـــومـــه زۀ
زۀ عـــاشـــق د دغـــي در مـــکـــان يـمـــه
زۀ دَ مــصـطــفـــیٰ ﷺ پـــه لار روان يـمـــه
کـــارزۀ داصـــحـــابـــوؓ د نبـــی ﷺ کـــوُم
کـــارزۀ داحبـــابـــوؓ دَ نبـــی ﷺ کـــوُم

زۀ پــــه دغــــي لاره پــــه جهــــان یــمـــه
زۀ دَ مــصـــطــفــیٰ ﷺ پـــه لار روان یــمـــه
کـــــار زۀ دَ نیــــکــــــانـــو اولیــــــاء کـــوُم
کــــــار دَ مُـــــرســـلانـــو انبیـــــاء کـــوُم
زۀ دَ حـــق دُنیـــا کښـــي تـــرجـــمـــان یـمـــه
زۀ دَ مــصـــطــفــیٰ ﷺ پـــه لار روان یــمـــه
کـــــار زۀ دَ تـــوحیـــد او دَ ســـنـــت کـــوُم
زۀ احـــمـــد دا کــــار بـــه هــرســــاعــت کــوُم
زۀ دښـــمـــن دُنیـــا کښـــي دَ شیـــطـــان یـمـــه
زۀ دَ مــصـــطــفــیٰ ﷺ پـــه لار روان یــمـــه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زۀ دَ مــصـــطــفــیٰ ﷺ د در غـــلام یـــمـــه
زۀ یــو خـــد متــګــــار دَ دیـــن اســلام یـمـــه
زۀ پـــــه دغــــي فــخــــر هـــرســــاعــت کــوُم
کــــار زۀ پـــــه دُنیــــا دَ شـــریـــعـــت کــوُم
زۀ پــــه دي صــفـــت پـــه هـــر انـــدام یــمـــه
زۀ دَ مــصـــطــفــیٰ ﷺ د در غـــلام یـــمـــه
زۀ ددغـــــــــي درســــــــره وفـــــــا کــــوُم
هـــرځـــائـــے هـــرســــاعـــت حـقـــه ویـنـــا کـوُم
زۀ پــــه دي ویـــنـــــا شـــریـــن کـــلام یـــمـــه

زهٔ دَ مصطفیٰ ﷺ د در غلام یمه
زهٔ دَ اسلام کار په محبت کوُم
زهٔ په مینه مینه هر سنت کوُم
زهٔ په دي عادت سحر ماښام یمه
زهٔ دَ مصطفیٰ ﷺ د در غلام یمه
زهٔ دَ هر غلام ئي غلامی کوُم
زهٔ به اتباع ئي ابدی کوُم
زهٔ احمد په دغي کار تمام یمه
زهٔ دَ مصطفیٰ ﷺ د در غلام یمه

★★★★★★★★

تمت بحمد اللّٰه تعالیٰ وبتوفیقه والصلوة والسلام
علیٰ رسوله محمد واله واصحابه اجمعین
ومن تبعهم الیٰ یوم الدین . امین

★★★★★★★★★★

بسم اللّٰه الرحمٰن الرحیم

حمد باري تعالیٰ

خدایه ستا دي دَ دُنیا دا نعمتونه
په دُنیا دي ستا دَ رحم بارانونه
لاندې زمکې دغه تولې خدایه ستا دي
خدایه ستا دي بره لوئې لوئې آسمانونه
بره لوح بره قلم دا ستا دي ستا دي
دَ تقدیر دي تا لیکلې کتابونه
بره عرش بره کرسی دَ عزت ستا ده
راورېږي ستا له درنه رحمتونه
مخلوقات د دغې زمکې ستا دي ستا دي
پیدا کړي رنګ په رنګ تا موسمونه
رنګ په رنګ دغه مخلوق تا پیدا کړے
پیدا کړي دَ دُنیا تا آوازونه
ونے بوټي دَ جهان تا پیدا کړي
پیدا کړي دي په زمکه لوئې لوئې غرونه
خوشبو تا ده پیدا کړے رنګ په رنګ
پیدا کړي رنګ په رنګ تا دي ګلونه
پیدا کړے دَ جهان تا هر صحرا ده

پیــدا کـــړي تـــا نهـــرونـــه دریـــابـــونـــه
صـــحیـــفـــې دي خـــدایـــا تـــا رانـــازل کـــړې
تـــا نبیـــانـــو لـــه ورکـــړي کتـــابـــونـــه
دَاحـــمـــدعـــلـــی خـــالـــق ئـــې دَجهـــان
ستـــا پـــه فـــضـــل ئـــې لیـــکـــلـــی دي شـــعـــرونـــه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښائستـهٔ دُنیا کښې په دُنیا دَ پاك سبحان میلمهٔ دے
دَلامـکـان میلمـه دے پاس په أسمان میلمهٔ دے
بـره لـه زمـکـې نـه مولـیٰ لـه پـه سفر هغـه ځی
بـره لـه زمـکـې نـه اللّٰـه لـه پـه سفر هغـه ځی
دا عـزتـمـنـده دَنبیانـو دا سلطان ﷺ میلمـهٔ دے
دَلامـکـان میلمـه دے پاس په أسمان میلمهٔ دے
بـره لـه زمـکـې نـه أسمـان تـه روانیـږی هغـه
بـره لـه زمـکـه لامـکـان تـه روانیـږی هغـه
پـه هر أسمـان وو دا آواز چې عالیشان میلمهٔ دے
دَلامـکـان میلمـهٔ دے پاس په أسمان میلمهٔ دے
ربَ پاس أسمـان تـه دَ دُنیا نـه مصطفیٰ بللے
ربَ لامـکـان تـه دَ دُنیـا نـه چې طٰهٰ ﷺ بللے
شـو آوازونـه چې راغـلـے دا انسـان میلمـهٔ دے
دَلامـکـان میلمـه دے پاس په أسمان میلمهٔ دے

په هر اسمان کښې ئې ديدن کړې مخلوقات دَ رب
په دې جهان کښې ئې ديدن کړې مخلوقات دَرب
بيا په عزت سره په قدر چې روان ميلمهٔ دے
دَ لامکان ميلمهٔ دے پاس په اسمان ميلمهٔ دے

ورته اسمان کښې فرښتې په تماشه وے دَ رب
بره جهان کښې فرښتې په تماشه وے دَ رب
دغه محبوب په دې دُنيا کښې دَ رحمان ميلمهٔ دے
دَ لامکان ميلمه دے پاس په اسمان ميلمهٔ دے

ورسره بره ملاقات هم دَ آدمؑ شوې دے
ديدن بيا بره دَ عيسىٰ ابن مريمؑ شوے دے
موسىٰ وئيل داخو نبى اخرزمان ﷺ ميلمهٔ دے
دَ لامکان ميلمه دے پاس په اسمان ميلمهٔ دے

دَ ابراهيمؑ سره ئې بره ملاقات شوے دے
ديدن بيا بره رنګ په رنګ دَ مقامات شوے دے
عيسىٰؑ وئيل چې دا خو ډير زيات مهربان ميلمهٔ دے
دَ لامکان ميلمه دے پاس په اسمان ميلمهٔ دے

ما احمد کړې دا خبرې تصوّر کښې تولې
ګوره دا په کتابونو معتبر کښې تولې
په بُراق سور لکه دَ نمر په شان روښان ميلمهٔ دے
دَ لامکان ميلمهٔ دے پاس په اسمان ميلمهٔ دے

## نصیحت

بـــي ازغـــو دَګــلاب ګــل نـــــهٔ مـلایــــږي
آزمــــائـــش نـــه بـغيـر خپـل نــهٔ مـلايــږي
چــي څـوك وائــی زهٔ پــه عشـق کښــي مبتلايـم
بـــي لــــه اُوره دغــــه تــل نـــــهٔ مـلاويـــږي
چـــي څـوك غــواړي لـوئـي مـقــام دَ مـحبـت
بــي لــــه سـختــو دا مــنـزل نــهٔ مـلاويـــږي
پـــه سپـرلـي کښـي بُلبلان پــه جهـان ښـكـاري
دَ خــــزان دَ بـــاغ بـلبــل نــــــهٔ مـلاويــــږي
پـــه كــوشـــش سـره تـميـز دَ ښـــهٔ اوبـد شـی
دَ كــوشـــش نـــه بـغيــر غَـل نــه مـلاويــږي
مــجـــازي او حـــقيـــقـــي مـيـنــــه جُـدا ده
حــقيــقــت خــو پــــه اټـكـل نــه مـلاويــږي
چـي څـوك غـواړي سپـرلـے دلتـه کښـي احـمـده!
دَ خـــزان نــــه بـغيــر بيـل نـــهٔ مـلاويـــږي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ ســنـــت كــور کښـي بـدعـت نــهٔ مـلاويــږي
دَ خيـــر كــــار کښــــي شـــرارت نـــــهٔ مـلاويـــږي
دَ ازغــو پـنـډ چـي دُنيــا کښـي څـوك پـه سر كړي
دغـــه پـنـډ کښـي مـحبـت نــهٔ مـلاويـــږي

دَ بـدبـو غـوټـه چـې چـا سـره پـه لاس وی
خـوشبـوئـی تـرې یـو سـاعـت نـه مـلاویـږی
دَ خـزان مـوسـم کښـې هیـڅ کـلـه دُنیـا کښـې
دَ سپـرلـے غـونـدے دولـت نـهٔ مـلاویـږی
دَ شیـطـان ابـلیـس پـه لاره پـه دُنیـا کښـې
دَ مـولـیٰ دَ در رحـمـت نـهٔ مـلاویـږی
دَ ذلـت پـه لارو هیـڅ کـلـه دُنیـا کښـې
دَ دُنیـا دَ در عـزت نـهٔ مـلاویـږی
دَ قـراٰن پـه شـان دُنیـا کښـې بـهٔ کـامـل
یـو کتـاب دَ صـداقـت نـهٔ مـلاویـږی
حـدیثـونـو کښـې شتـه وعـظ دَ رسـول ﷺ
دا بـغیـر لـه څـهٔ مـحـنـت نـهٔ مـلاویـږی
دَ احـمـد عـلـی دا وعـظ او نـصیـحـت دے
داسـې بـل ځـائـے نـصیـحـت نـهٔ مـلاویـږی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ځـمـه مـدیـنـې تـه زهٔ هـلـتـه بـه وُسیـږمـه
هـلـتـه کښـې روضـې سـره زهٔ بـه پـاتې کیـږمـه
هـلـتـه دے ژونـدون دَ تـن
هـلـتـه دے سـکـون دَ تـن
نُـور نـهٔ پـاتـے کیـږمـه نُـور ایسـاریـږمـه

څـمـه مـديـنـې تـه زهٔ هـلـتـه بـه وُسـيـږمـه
هــلـتــه دے رهبــر زمــا
هــلـتــه دے دلبــر زمــا
زهٔ پــه دغــه در پسـے زړهٔ کښـې تـل ژړيـږمـه
څـمـه مـديـنـې تـه زهٔ هـلـتـه بـه وُسـيـږمـه
هــلـتــه دی انــوار د ديــن
هــلـتــه دی اســرار دَ ديــن
دلتـه دَ فـراق اُور کښـې خـدائيګو زهٔ سوزيـږمـه
څـمـه مـديـنـې تـه زهٔ هـلـتـه بـه وُسـيـږمـه
هــلـتــه بــه آرام کــوُم
دغــه بــه تــمــام کــوُم
زهٔ تـرې نـهٔ صبـريـږمـه دلتـه کښـې کـړيـږمـه
څـمـه مـديـنـې تـه زهٔ هـلـتـه بـه وُسـيـږمـه
زهٔ احــمــد بــه دا کــوُم
کــار بــه دَ وفــا کــوُم
زهٔ لـکـه دَ ګـل پـه شـان دلتـه کښـې رژيـږمـه
څـمـه مـديـنـې تـه زهٔ هـلـتـه بـه وُسـيـږمـه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

کـوم بـدن چـې دَ سـنـت پـه رنګ شـی رنګ
هــغــه بـچ شــی دَ دُنيــا د هــريــو زنګ

لـــرے اُوســـــه دَ بــدعــت او بــدعتـــی نـــه

مستــحــق دے پـــه دُنیــا چـــې دَ هـــر سـنګ

ربَ پـــه دیـــن کښـــې دَ جهـــان عـــزت دے ایښـــے

پـــه دې ښـــکـــارې هـــر بشـــر دلتـــه کښـې دنګ

دَ نیـــکـــی کـــارونـــه ښـــهٔ دی دَ جهـــان

دَ مـــحشـــر پـــه ورځ بـــاعــث دے دَ هـــر ننګ

دَ شیـــطـــان ابـلیـــس نـــه لـــرے لـــرے اُوســـه

هـــریـــو بــد کـــار ســـره اُوســـه تـل پـــه جنګ

هـغــه تور چې دَ سـنـت پـه رنګ کښې رنګ شی

ورتـــه نـــهٔ وائـــی دُنیـــا کښـــې څـوك بـدرنګ

تـــهٔ احــمــد عـلــی پـــه خیـــر بــاندې مـئـین ئـې

لـــه دې وجــې تـــه ئـــې دیـن ســره پـــه څـنګ

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښـــارِ دَ مــدیــنـــې دے هـــر طـــرف بهـــارونــــه دی

ښـکـلـی هر طرف ته په کښې رنګ په رنګ ګلونه دی

دلتـــه دَ مـکـې نـه دَ مولیٰ مـحبوب راغلے دے

دَ لتـه دَ مـکې نه مـصطفیٰ ﷺ مطلوب راغلے دے

دلتـــه پـــه دې وجـــه هـــر طـــرف تـــه رحـمتـونــه دی

دلتـــه پـــاتـــے شـــو ے لـــوئې امـام دَ امـامـانـو دے

دلتـــه پـــاتـــے شـــو ے نُـــور خـــاتم د مُــرسلانو دے

ځکه په دې وجه دلته هر ځائے برکتونه دي

دلته رڼا ګانې دَ حضرت خیر الوریٰ ﷺ دي دا

دلته رڼا ګانې دَیٰسین او دَ طٰهٰ ﷺ دي دا

دلته رڼا کړې مصطفیٰ ﷺ دغه کورونه دي

دلته خوشبوئې دَ مُرسلانو دَ سردار شته دے

دلته خوشبوئې دَ دلبرانو دَ دلدار شته دے

دلته کښې دَ حق دَ پاره شوې بیانونه دي

دلته کښې احمده! دَ صدیقؓ سره عمرؓ شته دے

دلته کښې عثمانؓ سره حضرت علیؓ حیدر شته دے

دلته دَ جهان دغه ښائسته ښائسته لعلونه دي

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زار له مدینې نه شم هلته رڼا ګانې دي

هلته ده ښائسته فضا، یخې هوا ګانې دي

هلته دي اصحابؓ ښکلي هر ځائے په هر باب ښکلي

هر طرف ته هلته کښې حقے وینا ګانې دي

زار له مدینې نه شم هلته رڼا ګانې دي

هلته چمونه دي ښکلي ټول ګلونه دي

ښکلي دَ نبي ﷺ ښکلے، ښکلے ادا ګانې دي

زار له مدینې نه شم هلته رڼا ګانې دي

هلته ده خوشبو خوشبو، نشته هلته کښې بدبو

هلته عاجزي سره هرځائے دُعا ګاني دي
زار له مديني نه شم هلته رنا ګاني دي
هلته رحمتونه دي ، لوئي لوئي نعمتونه دي
ختمي دَ دُنيا د در هلته بلا ګاني دي
زار له مديني نه شم هلته رنا ګاني دي
زار له مديني نه شم وايمه احمدعلي
زۀ په دي دُنيا كښي يم ثناخوان دَ پاك نبي ﷺ
خوښي دَ رسول ﷺ زما تولي وينا ګاني دي
زار له مديني نه شم هلته رنا ګاني دي

نعتِ مصطفىٰ ﷺ

راغے پيغمبر ﷺ چي مديني ته رڼاګاني شوي
هر طرف ته ډكے دَ خوشبو نه هواګاني شوي
هر طرف ته ډك شول له خوشبو نه چمونه تول
هر طرف ته ډك شول له خوشبو نه منزلونه تول
ختمي له دُنيا نه په دُنيا كښي ژړا ګاني شوي
هر طرف ته ډكے دَ خوشبو نه هواګاني شوي
هر ځائے خوشبودار شو معطره شوه فضا بره
هر ځائے خوشبودار شو معطّره شوه خلا بره
ختمي دَ ابليس شطيان دُنيا كښي خنداګاني شوي
هر طرف ته ډكے دَ خوشبو نه هواګاني شوي

هـر ځـائـے مـعـطـره مـنـوَره سـراسـر شـولـو
هـر ځـائـے هـر مـحـفـل ددې جهـان تـول منوَر شولو
ختـمـې دَ دُنیـا نـه زنـاګـانې او غـلاګـانې شـوې
هـر طـرف تـه ډکـے دَ خـوشبـو نـه هـواګـانې شـوې
هـر ځـائـے منوَره پـه حـضرت رسول اللّٰه ﷺ شولو
ښـکـلی اے احـمـده ! هریو در په مصطفیٰ ﷺ شولو
ختمې دَ شیطان لعین دُنیا کښې جفاګانې شوې
هـر طـرف تـه ډکـے دَ خـوشبـو نـه هـواګـانې شـوې

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

رهبـر چـې مـا او تـاتـه نُور دَ خیـر راغـلے دے
رهبـر هـغـه هـر چـاتـه نُور دَ خیـر راغـلے دے
تیـرې ورسـره ختـمـے شـوے دَ ظـلـم پـه جهـان
تیـرے ورسـره ختـمـے شـوے پـه زمکـه پـه آسمان
رهبـر تـولـے دُنیـا تـه نُور دَ خیـر راغـلے دے
رهبـر هـغـه هـر چـاتـه نُور دَ خیـر راغـلے دے
تیـرې ورسـره ختـمـے شـوے دَ جهـل ددُنیـا
تیـرې ورسـره ختـمـے شـوے دَ کـفـر نـاروا
رهبـر هـغـه هـر خـوا تـه نُور دَ خیـر راغـلے دے
رهبـر هـغـه هـر چـاتـه نُور دَ خیـر راغـلے دے
تیـرې ورسـره ختـمـې دَ ګـنـاه شـوې دَ جهـان

تیـرې ورسـره ختـمـې دَ بدعـت شوې دَ شیطـان
مـحـفـل کښې اولیـاء تـه نُور دَ خیـر راغـلـے دے
تیـرے ورسـره ختـمـې دَ شیـطـان دَ شیطـانـت شو ې
تیرے هرځائے کښې ختمې په دُنیا کښې دَ لعنت شو ې
پـارسـا او عـلـمـاء تـه نُور دَ خیـر راغـلـے دے
رهبـر هـغـه هـرچـاتـه نُور دَ خیـر راغـلـے دے
رښـا دَ مـحبـت ئـې راخـوره کـړه پـه جهـان
احـمـدعـلـی لیـکـلـے مـخـتـصـردغـه بیـان
نـادان او هـر دانـا تـه نُـور دَ خیـر راغـلـے دے
رهبـر هـغـه هـرچـاتـه نُور دَ خیـر راغـلـے دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دا دُنیـا رڼـا رڼـا شـوه هـاشمـی ﷺ جـانـان چې راغـے
ښـۀ ښـائسـتـۀ ټـولـه دُنیـا شوه هاشمی ﷺ جانان چې راغـے
هـاشـمی جانان ﷺ چې راغـے هرطرف ته نوُر شو نُور
هـر بشـر پـه نیـغـه لار شو هربشر شو پـه سُرور
نـورانـی ټـولـه فضا شوه هاشمی جانان ﷺ چې راغـے
ښـۀ ښـائسـتـۀ ټـولـه دُنیا شوه هاشمی ﷺ جانان چې راغـے
هـاشـمـی جـانـان چې راغـے هریو ګل شو خوشبوداره
هاشمی جانان ﷺ چې راغـے هر محفل شو خوشبوداره
مـعـطَره پاس هـوا شوه هاشمی جانان ﷺ چې راغـے

ښۀ ښائستۀ ټوله دُنیا شوه هاشمي ﷺ جانان چې راغے
هاشمي جانان ﷺ چې راغے هر یو کور دَ نوره ډك شو
هاشمي جانان ﷺ چې راغے هر یو لور دَ نوره ډك شو
په هرلورروفا وفا شوه هاشمي جانان ﷺ چې راغے
ښۀ ښائستۀ ټوله دُنیا شوه هاشمي ﷺ جانان چې راغے
هاشمي جانان چې راغے نور نه ډك بره آسمان شو
اے احمده ! په دې نُور ښۀ ښائسته هر یو مکان شو
نوراني هره صحرا شوه هاشمي جانان ﷺ چې راغے
ښۀ ښائستۀ ټوله دُنیا شوه هاشمي ﷺ جانان چې راغے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زما ارمان دے چې دا شپې مې وې دَ یار کلي کښې
په دې دُنیا کښې دَ نبیانو دَ سردار ﷺ کلي کښې
څومره ښائستۀ څومره حسین زما دَیار کلے دے
څومره ښائسته څومره حسین دَ تاجدار ﷺ کلے دے
دغه وختونه زما وې دَ تاجدار ﷺ کلي کښې
زما ارمان دے چې دا شپې مې وې دَ یار کلي کښې
صفا ستهرا په دې دُنیا زما دَ یار کلے دے
لکه دَ نمر په شان رڼا زما دَ یار کلے دے
دغه وختونه چې زما وې دَ دلدار ﷺ کلي کښې
زما ارمان دے چې دا شپې مې وې دَ یار کلي کښې

هـلتـه بهـار دے دَ دُنيـا پـه چمـنـونـو كـبـنـي تـول
هـلتـه بهـار دے دَ دُنيـا پـه دې وختـونـو كـبـنـي تـول
زمـا وختـونـه تيـريـدے چـي خـوشبـودار كلى كـبـنـي
زمـا ارمـان دے چـي دا شپـي مـې وې دَ يار كلى كـبـنـي
دا مـې ارمـان دے تـمـنـا دغـه پـه زړهٔ لـرمـه
دَ ژبـي سـره تـل ويـنـا دغـه پـه زړهٔ لـرمـه
احـمـد ليـكـلـے دا شـعـرونـه دَ غمخوار ﷺ كلى كـبـنـي
زمـا ارمـان دے چـي دا شپـي مـې وې دَ يار كلى كـبـنـي

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

مـولـىٰ دى ايـبـنـي رحـمتـونـه دَ خپل يار كلى كـبـنـي
مـولـىٰ دى ايـبـنـي بـركـتـونـه دَ دلدار ﷺ كلى كـبـنـي
دَ بـركـتـونـو رحـمـتـونـو يـو چيـنـه ده پـه كـبـنـي
پـه دې دُنيـا كـبـنـي دَ جـنـت يـو ه ټـكـړه ده پـه كـبـنـي
ښائستهٔ جنت دے په دُنيا كـبـنـي دَ غمخوار ﷺ كلى كـبـنـي
مـولـىٰ دى ايـبـنـي رحـمتـونـه دَ خپل يار كلى كـبـنـي
هـره حـصـه ئـي دَ بـركـت او دَ رحـمـت نـه دكـه
هـره حـصـه ئـي پـه دُنيـا دَ فـضيـلـت نـه ډكـه
خـوشبـو دَ مشك او دَ عـنبـر ده خـوشبـودار كلى كـبـنـي
مـولـىٰ دى ايـبـنـي رحـمتـونـه دَ خپل يار كلى كـبـنـي
هـلتـه ده خـوره قـدرمـنـد پـه دُنيـا دَ جهـان

هلته ده خوره عزت منده په دُنیا دَ جهان
خوره ده دغه مبارکه دَ تاجدار ﷺ کلی کښې
مولیٰ دی ایښی رحمتونه دَ خپل یار کلی کښې
دا دَ نبی ﷺ دَ قدمونو دلته کښې اثر دے
دَ هاشمی ﷺ دَ قدمونو دلته کښې اثر دے
احمده ! ښته سکون دَ سیَدالابرار ﷺ کلی کښې
مولیٰ دی ایښی رحمتونه دَ خپل یار کلی کښې

دَ بې دیني حقیقت

بې دیني یو لوئي عذاب دے
دا دَ زړونو اضطراب دے
بدبوئی ده بدبوئی ده
هر انسان په دي خراب دے
هر انسان له ګمراهی ده
که غریب دے که نواب دے
په ربا خۀ اجر نشته
اُمیدوار چي دَ ثواب دے
په دُنیا کښي لوئي تکلیف دے
دَ عذاب بره سحاب دے
دا تیارۀ ددي جهان ده
نۀ أفتاب دے نۀ مهتاب دے

دا عـــــــــــذاب دا خــــــــــــــرت دے

دا عــــذاب پــــــه هــــريــــو بـــــاب دے

اے احـــــمـــــده ! خـــــلاصــــــــه دا ده

مستـــــــحـــــق دَ هـــــــر عتـــــــاب دے

دا عــــذاب پــــــه هــــريــــو بـــــاب دے

نعتِ مصطفىٰ ﷺ

ښائسته له هرجانانه مې جانان دَ مدينې ﷺ دے

ښائسته په مُرسلانو کښې سلطان دَ مدينې ﷺ دے

ښـائستـه پـه مُـرسلانـو کښې يادېږي پـه هر در

ښـائستـه تـول نبيـانو کښې يـاديـږي پـه هـر در

ښـائستـه لـه هر بشر نـه مهربان دَ مدينې ﷺ دے

ښائسته له هرجانانه مې جانان دَ مدينې ﷺ دے

ښـائستـه پـه مخـلوقاتو کښې يادېږي در پـه در

ښـائستـه تـولـو صـفـاتو کښې يادېږي در پـه در

خـاتـم دَ مُـرسـلانـو دا انسـان دَ مـديـنې ﷺ دے

ښائسته له هرجانانه مې جانان دَ مدينې ﷺ دے

ښـائستـه پـه بحـروبـر کښې داسې نشتـه بل بشـر

ليـدلـے چـابـه نـه وي دَ دُنيـا پـه دې نـظـر

تـفسيـر دَ پـاك کـلام ښـه عـاليشان دَ مـديـنې دے

ښائسته له هرجانانه مې جانان دَ مدينې ﷺ دے

ښائسته لاندې په زمکه دے ښائسته دے په اسمان
ښائسته پېغمبرانو کښې یادیږي دَ جهان
احمد علي عالي هریو بیان دَ مدینې دے
ښائسته له هرجانانه مې جانان دَ مدینې ﷺ دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

اوّلین دے اخرین دے بهترین دے
څوک دے څوک دے رحمة اللعٰلمین ﷺ دے
حق وینا دے نور رڼا دے مصطفیٰ دے
دا صادقه په دُنیا دے دا امین دے
څوک دے څوک دے رحمة اللعٰلمین ﷺ دے
حق امام دے نور تمام دے حق پیغام دے
په قران کښې هم طٰهٰ ﷺ دے هم یسٰین ﷺ دے
څوک دے څوک دے رحمة اللعٰلمین ﷺ دے
لوئي نسبت ئې فضیلت ئې ښه صحبت ئې
په دُنیا دَ هرچا دَ زړهٔ تسکین دے
څوک دے څوک دے رحمة اللعٰلمین ﷺ دے
حق وفائي حق رڼائي حق وینائي
اے احمده! هم محبوب دَ ربّ متین دے
څوک دے څوک دے رحمة اللعٰلمین ﷺ دے

★★★★★★

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

دا خو دَ نبيانو دَ افسر ﷺ خبري دي
دا خو عزت منددے سراسر خبري دے
دا خبري دي دَ مرسلانو دَ امام ﷺ
دا خبري دي دَ پاك نبي ﷺ دَ احترام
دَ ازمونږ دَ سيدالبشر ﷺ خبري دي
دا خو دَ نبيانو دَ افسر ﷺ خبري دي
دا خبري دي دَ اوَلين او آخرين
دا خبري دي دَ كائنات دَ بهترين
دغه دَ محبوب دَ ربّ اكبر خبري دي
دا خو دَ نبيانو دَ افسر ﷺ خبري دي
دا خبري دي دَ سلطانانو دَ سلطان ﷺ
دا خبري دي دَ كائنات دَ مهربان
خورم قسم زمونږ دَ پيغمبر ﷺ خبري دي
دا خو دَ نبيانو دَ افسر ﷺ خبري دي
دا خبري دي په كائنات كښي دَ غمخوار ﷺ
دا خبري دي د كائنات دَ حُسندار ﷺ
خورم قسم خبرو كښي بهتر خبري دي
دا خو دَ نبيانو دَ افسر ﷺ خبري دي
دا خبري دي دَ رحمة للعٰلمين

دا خبـــرې دي دَ رهـــنـمـــا زمــونـــږ دَ ديـن
قســـم دے دا زمــونــــږه دَ دلبـــر ﷺ خبـــرې دي
دا خـــو دَ نبيــــانـــو دَ افســـر ﷺ خبـــرې دي
دا خبـــرې دي دَ مـــصــطــفــىٰ او دَ يٰسيـن
دا خبـــرې دي دَيـــو ريښتـــونـــى دَ اميـــن
قســـم دے پـــه دُنيـــا دا مــعتبــر خبـــرې دي
دا خـــو دَ نبيــــانـــو دَ افســـر ﷺ خبـــرې دي
دا خبـــرې دي دَ مُــــرسـلانـــو دَ خــــاتـم ﷺ
دلتـــه پـــه دُنيــا كښــې دَ نبيــانـو دَ خــاتـم ﷺ
اے احـــمــدہ ! دا خـــو مــعـطّـر خبـــرې دي
دا خـــو دَ نبيــــانـــو دَ افســـر ﷺ خبـــرې دي

نعتِ مصطفىٰ ﷺ

زمـــا جـــانـــان مـحـمـد مـصـطـفـىٰ ﷺ دے
زمـــا ايـمـــان مـحـمـد مـصـطـفـىٰ ﷺ دے
زمـــا ايـمـــان زمـــا جـــانـــان هـغـــه دے
زمـــا ايـمـــان پـــه دې جهـــان هـغـــه دے
احســـان احســـان مـحـمـد مـصـطـفـىٰ ﷺ دے
زمـــا جـــانـــان مـحـمـد مـصـطـفـىٰ ﷺ دے
زمـــا جـــانـــان پـــه هـــر مـقـــام هـغـــه دے
زمـــا جـــانـــان دَ ديـن اسـلام هـغـــه دے

روښان روښان محمد مصطفیٰ ﷺ دے
زما جانان محمد مصطفیٰ ﷺ دے
زما طبیب ددي جهان نبی ﷺ دے
زما حبیب ددي جهان نبی ﷺ دے
ذیشان ذیشان محمد مصطفیٰ ﷺ دے
دَ جهنم نه حفاظت هغه دے
دَ هر تورتم نه حفاظت هغه دے
امان امان محمد مصطفیٰ ﷺ دے
زما جانان محمد مصطفیٰ ﷺ دے
په هر ادا کښي لاثانی هغه دے
علاج دُنیا کښي روحانی هغه دے
سلطان سلطان محمد مصطفیٰ ﷺ دے
زما جانان محمد مصطفیٰ ﷺ دے
دَ رهبرانو په رهبر یادیږی
نورانی نور کله بشر یادیږی
بیان بیان محمد مصطفیٰ ﷺ دے
زما جانان محمد مصطفیٰ ﷺ دے
رڼا رڼا دَ کُل جهان هغه دے
داسي رڼا دَ هر مکان هغه دے
عیان عیان محمد مصطفیٰ ﷺ دے

زمـــا جـــانـــان مـحـمـد مـصـطـفـیٰ ﷺ دے
دَ پـاس مهتـاب پـه شان ښائستـهٔ ښکلے دے
دَ ګل ګلاب پـه شان ښائستـه ښکلے دے
ریـحـان ریـحـان مـحـمـد مـصـطـفیٰ ﷺ دے
زمـــا جـــانـــان مـحـمـد مـصـطـفـیٰ ﷺ دے
زهٔ احـمـد دلتـه دا ویـنـا کـوُمـه
دغـه ویـنـا زهٔ پـه دُنیـا کـوُمـه
بـرهـان بـرهـان مـحـمـد مـصـطفیٰ ﷺ دے
زمـــا جـــانـــان مـحـمـد مـصـطـفـیٰ ﷺ دے

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

لـه هـر حسیـن نـه پـه دُنیا کښې ډیر حسین ئې
اے هـاشـمـی عـربـی ﷺ ډیـر بهتـریـن ئـې
له هر حسین نـه پـه دُنیا کښې ډیر حسین یادیږے
تـل پـه لـقـب بـانـدې قسم دے بهتـرین یادیږے
ستـا خو لقـب دے چې تهٔ دوست دَ ربّ متین ئې
اے هـاشـمـی عـربـی ﷺ ډیـر بهتـریـن ئـې
نشتـه دے نشتـه ستـا نـه وروستو پیغمبر نبی ﷺ بل
نشتـه نشتـه ستـا وروستـو یـو افسر نبی ﷺ بـل
داسـې خـاتـم دَ انبیـاء او مـرسـلیـن ئـې
اے هـاشـمـی عـربـی ﷺ ډیـر بهتـریـن ئـې

ګل دَ جهـان ګل عـالیشـان ئـيِ پـه دُنیـا عـربـی
داسي خائستـهٔ ئي په دُنيا کښي مصطفیٰ ﷺ عربی
دَعـجـمـیـانـو عـربـیـانـو نـیـازبـیـن ئـي
اے هـاشـمـی عـربـی ﷺ ډیـر بهـتـریـن ئـي
نـمـر دَ مـکـي او مـدیـنـي ئـي راخـتـلـے بـره
نـمـر دَ دُنیـا دَ هـر حـصـي ئـي راختـلـے بـره
قـرآن یـاد کـړے پـه طٰـهٰ ﷺ او پـه یٰسین ﷺ ئي
اے هـاشـمـی عـربـی ﷺ ډیـر بهـتـریـن ئـي
ستـا دَ مـقـام او مـرتبـي نـه عـلـمـاء خبـر دی
ستـا دَ مـقـمـام او مـرتبـي نـه اولیـاء خبـر دی
وائـی احـمـد تـهٔ هـم ریښتـونـے او امیـن ﷺ ئي
اے هـاشـمـی عـربـی ﷺ ډیـر بهـتـریـن ئـي

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

څوك چـي قـرآن دَ مـصطفیٰ خیـرالانـام ﷺ اُولـولـی
هـغـه بـه دلتـه پـه دُنیـا غـوره کلام اُولـولـی
څـوك چـي کتـاب دَ پاك سبـحـان پـه مینه مینه وائی
څـوك چـي کتـاب دَ ربِ رحـمـان پـه مینـه مینـه وائی
څـوك چـي رښـا ښـائستـهٔ کتـاب غـوره تمـام اولـولـی
هـغـه بـه دلتـه پـه دُنیـا غـوره کلام اُولـولـی
څـوك چـي کتـاب دا نـازل شـوے بهـتـریـن اُولـولـی

څوك چې كتاب دا نازل په ښۀ حسين اُولولی
هغه به دلته په دُنيا كښې حق پيغام اولولی
هغه به دلته په دُنيا غوره كلام اُولولی
څوك چې قران په يو محفل كښې دَ جهان اُولولی
څوك چې قران په يو محفل كښې عاليشان اُولولی
هغه خلاصه به په دُنيا كښې دَ اسلام اُولولی
هغه به دلته په دُنيا غوره كلام اُولولی
څوك چې قران سره كړی مينه او عزت ئې كوی
څوك چې قران سره كړی مينه تلاوت ئې كوی
داسې احمده ! ده چې وِرد به دَ آرام اُولولی
هغه به دلته په دُنيا غوره كلام اُولولی

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ګل دے ګل دَ ګلستان زمونږ نبی ﷺ
نُور دے تل دَتول جهان زمونږ نبی ﷺ
ګل دے ګل دَ هر محفل په دې جهان
ګل دے ګل دَ دې دُنيا دَ ګلستان
يو حصه ده دَ ايمان زمونږ نبی ﷺ
نُور دے تل دَتول جهان زمونږ نبی ﷺ
ګل دے ګل ورته تول وائی عاشقان
ګل دے ګل ورته تول وائی عالمان

تــل بهـــار دے دَ خــــزان زمــونـــږ نبـــی ﷺ
نُــور دے تــل دَتــول جهـــان زمـــونـــږ نبـــی ﷺ
ګـــل دے ګـــل د دې نـــــه هــر خــوك دی خبــر
ګــل دے ګــل پـــه دي جهـــان كښــي مـعـطّـر
ګـل دے ګـل ډیـر عـــالیشـــان زمـونـــږ نبـی ﷺ
نُــور دے تــل دَتــول جهـــان زمـــونـــږ نبـــی ﷺ
ګـــل دے ګـــل ددې دُنیـــــا دَ هـــر مـــكـــــان
ګـــل دے ګـــل ورســـره بـــره دَ آســـمـــــان
ګـل دے ګـل دَاطـمیـنـــان زمـونـــږ نبـی ﷺ
نُــور دے تــل دَتــول جهـــان زمـــونـــږ نبـــی ﷺ
ګـــل دے ګـــل وائـــی احـــمـــد دَتــول مـــردان
ګـــل دے ګـــل ورتـــــه تــول وائـــی دَ جهـــان
ګـل دے ګـل دَ مسـلـمـــان زمـونـــږ نبـی ﷺ
نُــور دے تــل دَتــول جهـــان زمـــونـــږ نبـــی ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ګـل دے ګـل دَ هـر مـحـفـل زمـونـږ نبـی ﷺ
داســـې يـــاد دے دلتـــه تــل زمـونـــږ نبـــی ﷺ
خــــوشبـــو داره دا حسیـــن پــــه تــول جهـــان
خــــوشبـــو داره دا حسیـــن پــــه هـــر مـــكـــان
ده ښُــــكـــلا دَ هـــر مـــنـــزل زمـــونـــږ نبـــی ﷺ

ګــل دے ګــل دَ هــر مــحـفـل زمــونــږ نبــی ﷺ
نـــــهٔ مــقـــام تـــــهٔ ئـــي رسيــــږي دا ګـــلاب
نـــــهٔ ريــحـــان ورتــــه رسيـــږي پــــه يــو بـــاب
خــوش دَ غيـــرو هــم دَ خپــل زمــونـــږ نبــی ﷺ
ګــل دے ګــل دَ هــر مــحـفـل زمــونــږ نبــی ﷺ
تــول مــئيـــن پـــه دغــــه ګــل دی عــــالــمـــان
تــول مــئيــن پـــه دغــــه ګــل دی امـــامـــان
بهتـــريـــن نِـعُـــمُ الْبَـــدَل زمــونـــږ نبـــی ﷺ
ګــل دے ګــل دَ هــر مــحـفـل زمــونــږ نبــی ﷺ
زهٔ احـــمـــد د دغـــي ګـــل صـــفـــت کــوومـــه
ددې ګــل پـــه هـــر مــحـفـل صـفـت کــوومـــه
ده ښُـــکـــلا دَ هــر مــحــل زمــونـــږ نبـــی ﷺ
ګــل دے ګــل دَ هــر مــحـفـل زمــونــږ نبــی ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زمـــا مـــکـــه خـــوښـــه ده ، هـــم مـــدينـــه خـــوښـــه ده
نـــورانـــی دلتــــه زمــــا ، هـــره حـــصـــه خـــوښـــه ده
دَ دَ انـــوار نـــــه ډکـــــه ، دا دَ اســـرار نـــــه ډکـــــه
دا دَ انـــوارو دلتـــــه ، زمـــــا چيـــنـــــه خـــوښـــه ده
دلتـــه خـــوشبـــو وريـــږي، هـــرخـــواتـــه دا خـــوريـــږي
زمـــا ئـــي ورځ خـــوښـــه ده ، زمـــا ئـــي شپـــه خـــوښـــه ده

خوښ مې دي تول ساکنان، د دغې در په جهان
زما یاران د نبي ﷺ، هره تولــه خوښـه ده
خوښ ئې هر ګل دے زما، هر یو محفل دے زما
دا د ګلونو دلته، مې ګلدسته خوښه ده
هر یو قدم د نبي ﷺ، په هره لاره بانـدې
هر یو مقام د نبي ﷺ، زما کوڅه خوښه ده
ښکلے مدفن د نبي ﷺ، ښکلے چمن د نبي ﷺ
قسم دے هر ساعت، زما روضه خوښه ده
دا د جنت توته ده وائي احمد په جهان
د برکتونو ډکه دا مې توته خوښه ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دیدن له چې ورځے تهٔ د نبي خیر الانام ﷺ
ډالـــي ځــان سره یوسه د درود او د سلام
دیدن له چې ورځے د مدینې خیر الابرار ﷺ
دیدن له چې ورځے د مُرسلانو د سردار ﷺ
لازم په دې سفر کښې دے ادب او احترام
ډالــي د ځـــان سره د درود او د سلام
دیدن لــه چې ورځے د معطره منوَر
دیدن له چې ورځے تهٔ مزمل له مدثر
په مینه محبت سره کوهٔ هر یو کلام

ډالـــــــی دَ ځـــــان ســـــره دَ درود او دَ ســـــلام

دیـدن لـــه چـيږ ورځـــے تـــهٔ دَ نبـی اَخـرزمـان ﷺ

دیـدن لـــه چـيږ ورځـــے دَ سـلـطـانانو دَ سلـطـان ﷺ

لازم دلتـــــه ادب دے پـــــه اَزاد او پـــــه غــلام

ډالـــــــی دَ ځـــــان ســـــره دَ درود او دَ ســـــلام

دیـدن لـه چـيږ ورځـے تـهٔ دَ مـحبوب غـنـی سبحـان

دیـدن لـــه چـيږ ورځـــے تـــهٔ دَ مـحبوب دَ دوجهـان

لازم دے هــــر ادب دَ امـــــامـــــانـــو دَ امـــام ﷺ

ډالـــــــی دَ ځـــــان ســـــره دَ درود او دَ ســـــلام

احـــمـــدعـــلـــی لیـــکـلـے دَ دیـدن دے دا ســفـــر

سـفــر دَ هــر بشــر دے پـــه دُنیــا کـبـنـي معطَـر

مـونـدلـے بـرکـتـونـه دلتـه کـبـنـي دی خـاص وعـام

ډالـــــــی دَ ځـــــان ســـــره دَ درود او دَ ســـــلام

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

افســـــر افســـــر خیــــر البشــــر ﷺ مـــدنــــی

رهبـــــر رهبـــــر خیــــر البشــــر ﷺ مـــدنــــی

نُـــور هـــدایـــت دے بـــره نـــمـــر دَ جهـــان

قـــمـــر قـــمـــر خیــــر البشــــر ﷺ مـــدنــــی

پـــه نــور صـــفـــت ســره یـــادیـــږی هـــغـــه

بشــــر بشــــر خیــــر البشــــر ﷺ مـــدنــــی

دَ دي جهـــان دَ پـــاره ستـــرګـــي ښـکـلـے
نـــظـــر نـــظـــر خیـــر البشـــر ﷺ مـــدنـــی

دَ هـــریـــو در ښُـکـلا ښـــائسـتــت دَ چـمـن
سـحـــر سـحـــر خیـــر البشـــر ﷺ مـــدنـــی

ورلـــــه ورکـــــړے ربّ دَ وحـــی دولـــت
خبـــر خبـــر خیـــر البشـــر ﷺ مـــدنـــی

دانـــا خبـــر دے نـــادان نـــهٔ پـوهیـــږی
ثـــمـــر ثـــمـــر خیـــر البشـــر ﷺ مـــدنـــی

زیـــړے سـکـــون دَ هـــریـــو در دَ پـــاره
اختـــر اختـــر خیـــر البشـــر ﷺ مـــدنـــی

مـحـبـوب دَ ټـولـو خـلـقـو اے احـمـده!
دلبـــر دلبـــر خیـــر البشـــر ﷺ مـــدنـــی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نـور دے دُنیـا کښـي دَ حـضـور ﷺ پـه زمـکـه
ښـکـلـے دے ښـکـلـے دغـه نُـور پـه زمـکـه

دَ هـر بشـر نـه ښـهٔ اعـلـیٰ یـادیـږی
یـاد دے اعـلـیٰ هـغـه ضـرور پـه زمـکـه

څـنګ چـي مـقـام دے دَ مـعـراج دَ سـفـر
نـهٔ دے مـقـام داسـے دَ طـور پـه زمـکـه

پـه صـابـرانو کښـي صـابـر هـغـه دے

داسي شاکر نشته مشکور په زمکه
ربَ چې فاتح کړلو په زړونو ټولو
داسې به نۀ وي يو منصور په زمکه
دَ هريو قلب دَ اطمينان باعث دے
دَ هريو زړۀ دے نُور سُرور په زمکه
پاك له هر قسمه معصيت نه هغه
داسې به نۀ وي يو مغفور په زمکه
دغه تعليم دے دَ رسول عربي
خوشحاله تل ساته مزدور په زمکه
داسي سيرت کښي دَ نبي ﷺ راغلي
پوره حاجت کړه دَ مجبور په زمکه
ربَ به دے بوځي تا احمده! ورله
کۀ ربَ ته وي دغه منظور په زمکه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دُنيا ده رڼا کړي تا آسمان دے رڼا کړے
رسوله! ﷺ دَ دُنيا تا هر مکان دے رڼا کړے
دُنيا ده رڼا کړي تا دُنيا کښي هر سحر
دُنيا ده رڼا کړي تا دُنيا کښي مازيګر
په نور سره هر زړه دَ مسلمان دے رڼا کړے
رسوله! ﷺ دَ دُنيا تا هر مکان دے رڼا کړے

دُنیا دي رڼا کړي، رڼا کړي تا فضا ده
دُنیا دي رڼا کړي ، رڼا کړي تا هر خوا ده
سنت سره دُنیا کښې په قرآن دي رڼا کړي
رسوله ! ﷺ دَ دُنیا تا هر مکان دي رڼا کړي
دُنیا دي رڼا کړي داسې وائي عالمان
دُنیا دي رڼا کړي داسې وائي ټول جهان
دا کور کلي دُنیا کښې بیابان دي رڼا کړي
رسوله ! ﷺ دَ دُنیا تا هر مکان دي رڼا کړي
مردان دي رڼا کړي داسې وائي نن احمد
قسم دې رڼا کړي دَ مؤمن دې تا لحد
قسم دې د دُنیا دغه دروان دې رڼا کړې
رسوله ! ﷺ دَ دُنیا تا هر مکان دې رڼا کړې

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ده مجموعه دَ انواراتو ستا سیرت رسوله ! ﷺ
دَ ثوابونو ذریعه ده ستا صفت رسوله ! ﷺ
ستا په سیرت کښې انوارت ددي جهان پراته دي
ستا په سیرت کښې انوارات دَ هرآسمان پراته دي
ستا دَ سیرت تذکره ده لوئي عبادت رسوله ! ﷺ
دَ ثوابونو ذریعه ده ستا صفت رسوله ! ﷺ
ستا په سیرت کښې هرانسان له یو رڼا پرته ده

ستا په سيرت کښې مسلمان له يو رڼا پرته ده
دغه رڼا دَ کائنات ده دَ سنت رسوله ! ﷺ
دَ ثوابونو ذريعه ده ستا صفت رسوله ! ﷺ

ستا په سيرت کښې ددې ژوند پوره احکام موجود دی
ستا په سيرت کښې دا احکام دلته تمام موجود دی
مونږ له راکړے ستا په وجه ربَ رحمت رسوله ! ﷺ
دَ ثوابونو ذريعه ده ستا صفت رسوله ! ﷺ

ستا په سيرت باندې مئين خلق دُنيا کښې شته دے
ستا په صفت باندې مئين خلق دُنيا کښې شته دے
په نعتونو کښې دے دغه لوئې نعمت رسوله ! ﷺ
دَ ثوابونو ذريعه ده ستا صفت رسوله ! ﷺ

ستا په سيرت کښې ددې ژوند يو نمونه پراته ده
دا نمونه دَ دې جهان په هر حصه پراتهٔ ده
عالي دُنيا کښې په دُنيا دے ستا نسبت رسوله ! ﷺ
دَ ثوابونو ذريعه ده ستا صفت رسوله ! ﷺ

ستا په سيرت کښې دَ هر کاريو طريقه پرته ده
دَ صفتونو په دُنيا يو ګلدسته پرته ده
ستا هريو کار کښې ربَ پټ کړے هدايت رسوله ! ﷺ
دَ ثوابونو ذريعه ده ستا صفت رسوله ! ﷺ

ستا په سيرت کښې دَ هريو مشکل زهٔ حل وينمه

ستا په سيرت کښې هر بشر لـه نجات تل وينمه

احمد ليکلے ستا دے ذکر دا ساعت رسوله! ﷺ

دَ ثوابونو ذريعه ده ستا صفت رسوله! ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دلبر دَ دلبرانو پيغمبر ﷺ زمونږه دے

افسر دَ افسرانو پيغمبر ﷺ زمونږه دے

دلبر دَ دلبرانو محمد خير الابرار ﷺ

دلبر دَ دلبرانو دَ نبيانو دے سردار ﷺ

امام دَ اماموانو پيغمبر ﷺ زمونږه دے

افسر دَ افسرانو پيغمبر ﷺ زمونږه دے

افسر دَ افسرانو محمد خير الانام ﷺ

افسر دَ افسرانو دَ دُنيا دَ خاص وعام

ملګرے دَ نيکانو پيغمبر ﷺ زمونږه دے

افسر دَ افسرانو پيغمبر ﷺ زمونږه دے

دلبر دَ دلبرانو دَ نبيانو دَ جهان

دلبر دَ دلبرانو په دُنيا دَ مسلمان

رهبر دَ رهبرانو پيغمبر ﷺ زمونږه دے

افسر دَ افسرانو پيغمبر ﷺ زمونږه دے

محبوب دے دَ مولیٰ هغه محبوب دے دَ جهان

مولیٰ ورله ورکړے په دُنيا دغه قرآن

مـئـین پـه یتیـمـانو پیـغـمبر ﷺ زمـونـږه دے
افســـر دَ افســـرانــو پیــغــمبــر ﷺ زمــونـــږه دے
دلبـــــر دَ دلبـــرانـــو دے دلبـــر هـــم دَ احـــمـــد
رهبـــر دَ رهبـــرانـــو دے رهبـــر هـــم دَ احـــمـــد
مـحبـوب دَ صـالـحـانو پیـغـمبر ﷺ زمـونـږه دے
افســـر دَ افســـرانــو پیــغــمبــر ﷺ زمــونـــږه دے

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زهٔ یم یو غـلام دَ پـاك رسـول ﷺ پـه غلامانو کښې
زهٔ یـو امتـــی یـم دَ رســول ﷺ پـــه امتیـانو کښـــې
زهٔ فـخـر کـوومـه پـه دې دلتـه کښـې سحر ماښام
زهٔ فـخـر کـوومـه پـه دې دلتـه کښې پـه هر مقام
زهٔ یم ثـنـاخـوان دَ پاك رسـول ﷺ پـه عـاشقانو کښې
زهٔ یـو امتـــی یـم دَ رســول ﷺ پـــه امتیـانو کښـــې
دا خـــو زمـــا فـــخـــر او عـــزت لـــره کـــافـــی دی نـــن
ښـکلـے په نسبت دَ مصطفیٰ ﷺ مې دے ښائسته بدن
ربّـه ! مـا کـړے شـمـار ددغـه در پـه انسانانو کښې
زهٔ یـو امتـــی یـم دَ رســول ﷺ پـــه امتیـانو کښـــې
در دغـــه عـــالـــی دے داســې وائـــی عـــالـمـان خلق
در دغـــه عـــالـــی دے داســې وائـــی پـــه جهـــان خلق
داســې بـــادشـــاه نشتـــه ددنیـــا پـــه بـــادشاهانو کښې

زۀ یـو امتـــی یـم دَ رسـول ﷺ پـه امتیـانو کښـي
دردغـه عـالـی دے دغـه درکښـي خوشبویانـي دی
دردغـه عـالـی دے دغـه درکښـي وفـاګـانـي دی
ربّـه ! مـاکـړے شـمـار ددغـه درپـه درباریانو کښـي
زۀ یـو امتـــی یـم دَ رسـول ﷺ پـه امتیـانو کښـي
دا ډیـر لـوئـي عـزت دے چـي نسبت دَ مـحمد ﷺ لرم
دا ډیـر لـوئـي عـزت چـي زۀ دردغـه احمـد لـرم
ربّـه ! ما کړے شـمار ددغـه درپـه مدح خوانو کښي
زۀ یـو امتـــی یـم دَ رسـول ﷺ پـه امتیـانو کښـي

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ربّـه ! مـا خـادم کـړے دَ روضـي پـه خادمانو کښي
غـواړم درنـــه غـواړم دا دُعـا پـه دُعـاګـانو کښـي
ربّـه ! دا نـصیـب کـړے پـه دُنیا باندي خدمـت زما
ربّـه تـل نـصیـب کړے پـه دُنیـا کښي دا فضیلت زما
ربّـه ! مـا شـامـل کـړے پـه ټـولی دَ صـالحانو کښي
غـواړم درنـــه غـواړم دا دُعـا پـه دُعـاګـانو کښـي
دغـه فـضیـلـت دغـه خدمت زما نصیب کړے تۀ
دغـه پـه دُنیـا کښـي لـوئـي دولـت زما نصیب کړے تۀ
ربّـه ! مـا شـامـل کـړے نیك عـمـلـه عـالمانو کښي
غـواړم درنـــه غـواړم دا دُعـا پـه دُعـاګـانو کښـي

دغــــه عبـــادت او ســـعـــادت درنــــه زۀ غــوارمـــه
دغــــه هــدايــت اولـوئـي نعـمـت درنـه زۀ غـوارمـه
رَبـه ! مـا شـامـل كـړے نيك عـمـلـه شاعرانو كښي
غـوارم درنــــه غـوارم دا دُعـا پــه دُعـا ګـانـو كښـي
رَبـــه ! درنــه غــوارمــه دَ پـاك نبی روضـه ښـكـلــے
رَبـه ! درنـه غـوارمـه ښـائستـۀ ښـۀ مدينـه ښكلے
رَبـه ! ما شـامـل كـړے نيك عـمـلـه بنديګانو كښي
غـوارم درنــــه غـوارم دا دُعـا پــه دُعـا ګـانـو كښـي
رَبـــه ! درنــــه غـــوارمـــه خـوشبـو دَ مـحـمـد ﷺ دَ در
غـوارمـــه احـمـدعـلـى دُنيـا كښـي دَ دُنيـا سـحـر
رَبـه ! مـا شـامـل كـړے پـه صـادقـه عـاشقانو كښي
غـوارم درنــــه غـوارم دا دُعـا پــه دُعـا ګـانـو كښـي

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

خيـر الْبشـر نُور الْقـمـر دے مـصـطـفىٰ ﷺ زمونـږه
رهبـر رهبـر دَ هـر بشـر دے مـصـطـفـىٰ ﷺ زمـونـږه
نبيـان چـې څـومـره پـه دُنيـا كښـي دَ مولىٰ راغلى
نبيـان چې څـومره پـه دُنيـا كښي پـه هرخوا راغلى
افسـر افسـر دَ هـر افسـر دے مـصطفىٰ ﷺ زمونـږه
رهبـر رهبـر دَ هـر بشـر دے مـصـطـفـىٰ ﷺ زمـونـږه
څـومـره چـې څـومـره پـه دُنيـا كښـي امامان وينمـه

څومره چې څومره په دُنیا کښې عالمان وینمه
محبوب دلبر دَ هر دلبر دے مصطفیٰ ﷺ زمونړه
رهبر رهبر دَ هر بشر دے مصطفیٰ ﷺ زمونړه
څومره چې وینم انسانان په دې خبره ګواه
څومره چې وینم عاشقان په دې خبره ګواه
سحر سحر دے نُور سحر دے مصطفیٰ ﷺ زمونړه
رهبر رهبر دَ هر بشر دے مصطفیٰ ﷺ زمونړه
زما یاران به دَ دُنیا ټول ګواهي ورکوی
دغه بیان به دَ دُنیا ټول ګواهي ورکوی
خوښ دَ مولیٰ غنی اکبر دے مصطفیٰ ﷺ زمونړه
رهبر رهبر دَ هر بشر دے مصطفیٰ ﷺ زمونړه
زۀ یم احمد په دې ګواه دا ګواهي ورکوومه
مخلوق ته دلته په اشعارو آګاهي ورکوومه
قسم دے سر دَ هر یو سر دے مصطفیٰ ﷺ زمونړه
رهبر رهبر دَ هر بشر دے مصطفیٰ ﷺ زمونړه

## دَ محشر ورځ

حقه دَ محشر ورځ ده یوه ورځ دا را به شی
حق به د باطل نه بیا دغه ورځ جُدا به شی
یو خوا به نیکان شی ټول بل خوا ته به وران شی ټول
یوه ورځ به دا دُنیا دا فانی فنا به شی

یو خوا ته اشرار به وی بل خوا ته ابرار به وی
دغه پټې ستر ګې به بیا کهلاؤ رڼا به شي
هر بشر خبر به شی هر څیز په نظر به شي
فکر به انسان سره دلته خپل پیدا به شي
څۀ چې چا نن کړی دی هلته کښې ئې وړی دی
نۀ به په چا ظلم وی هر یو کار صفا به شي
دا متکبره ټول دغه دُښمنان دَ دین
دغه دَ عزت خلق دغه وخت رُسوا به شي
تله به دَ عدل وی ورځ چې محشر شی بیا
بیل به دَ روانه ټول هر یو ناروا به شي
رحم دَ مولیٰ به وی هلته په بنده باندې
نیك انسان به دغه وخت بچ له هر بلا به شي
یاده دَ محشر کړه ورځ دلته کښې احمده! نن
دا عمل به تالره هلته ښۀ سودا به شي

دَ بدعت مذمت

مینه چې دَ چا وی دَ بدعت سره په زړۀ کښې
دے به ساتی مینه شرارت سره په زړۀ کښې
دغه رُسوائی ده په جهان دَ هر بشر
څوك چې ساتی مینه شیطانت سره په زړۀ کښې
دغه ناکامی ده هر بشر له په هر در

څوك چې ساتې مينه دَ لعنت سره په زړۀ كښې
دغه بدبختي ده دَ دُنيا او دَ آخر
څوك چې ساتې مينه ضلالت سره په زړۀ كښې
دغه بې ديني ده په دُنيا كښې په هر در
څوك چې ساتې مينه دَ ظلمت سره په زړۀ كښې
دغه جُدائي ده په دُنيا دَ هر بشر نه
څوك چې ساتې مينه دَ نفرت سره په زړۀ كښې
هغه په دُنيا دے دَ عزت نه لرے لرے
څوك چې ساتې مينه دَ ذلت سره په زړۀ كښې
اے احمده ! نشته په كښې خير دَ دوجهان
څوك لرې مينه عداوت سره په زړۀ كښې

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

راته محبوب په دې دُنيا دَ پاك سبحان ياديږي
چې په لقب سره نبي آخرزمان ﷺ ياديږي
چې په لقب سره خاتم الانبياء ﷺ هغه دے
چې په لقب سره امام الاولياء ﷺ هغه دے
هغه امام راته دُنيا كښې عاليشان ياديږي
راته محبوب په دې دُنيا دَ پاك سبحان ياديږي
چې په لقب سره ياديږي مصطفیٰ عربي ﷺ
چې په لقب سره ياديږي په طٰهٰ عربي ﷺ

پــه مــزمـل او مـدثــر چـې پــه قـرآن يـاديــږي
راتــه مـحبوب پـه دې دُنيـا دَ پـاك سبـحـان ياديـږي
چـې پـه لـقـب سـره يـاد شـوے دَ دُنيـا سـحـر دے
چـې پـه لـقـب سـره يـاد شـوے نـوراني قـمـر دے
نـورانـي نُـور راتــه دُنيـا كښـې دَ جهـان يـاديــږي
راتــه مـحبوب پـه دې دُنيـا دَ پـاك سبـحـان ياديـږي
چـې پـه لـقـب سـره صــادقـه او امين هغـه دے
چې پـه لقب سره قرآن كښې پـه يٰسين هغه دے
مـاتـه دُنيـا كښې دا ښائسـتـهٔ حسين انسان ياديږي
راتــه مـحبوب پـه دې دُنيـا دَ پـاك سبـحـان ياديـږي
پـه هـر لـقـب سره دُنيا كښې بهتـريـن هـغـه دے
پــه هــر لقــب كښــې اوّلين او آخـريـن هغــه دے
احــمـده ! تــا تــه پـه دُنيـا دغــه جـانـان يـاديـږي
راتــه مـحبوب پـه دې دُنيـا دَ پـاك سبـحـان ياديـږي

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

هــغـــه دلبـــر دَ دلبـــرانــو پــه دلبـر يـــاديـــږي
پـه مُـرسلانو كښې زمـونـږه پيـغمبر ﷺ ياديږي
ورتـــه دلبــر دَ دلبـــرانـــو هـــر بشـــر وئيـلـے
ورتـــه دلبــر دَ دلبـــرانـــو هـــر دلبـــر وئيـلـے
داسـې مـحبـوب داسـې دلبـر پـه هريـو در ياديږي

په مُرسلانو کښې زمونږه پیغمبر ﷺ یادیږی

ورته محبوب دَ مُرسلانو په دُنیا کښې وائی

ورته محبوب دَ صالحانو په دُنیا کښې وائی

قسم دے هر ځائے اطمینان دَ هر ځیګر یادیږی

په مُرسلانو کښې زمونږه پیغمبر ﷺ یادیږی

ورته محبوب په دې جهان دَ مخلوقاتو وائی

ورته جامع په کائنات کښې دَ صفاتو وائی

داسے افسر داسے دلبر داسے نظر یادیږی

په مُرسلانو کښې زمونږه پیغمبر ﷺ یادیږی

ورته محبوب دَ ټول عرب په ټول عرب کښې وائی

ورته قسم دے بهترین په هر مکتب کښې وائی

داسې بهتر دَ کائنات په بحر وبر یادیږی

په مُرسلانو کښې زمونږه پیغمبر ﷺ یادیږی

هغه محبوب دے دَ احمد ددې مردان په زمکه

هغه محبوب دے دَ احمد ددې جهان په زمکه

کله په نُور دَ پاس قمر یا په سحر یادیږی

په مُرسلانو کښې زمونږه پیغمبر ﷺ یادیږی

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دا چې دلته کښې هر څۀ دی محمده! ﷺ

بے لتانه دغه نۀ دی محمده! ﷺ

دا ستـــرګـــو چـــې لیـدل کـوی دُنیـــا کښـې
تـــا چـــې نـــهٔ ویـنـــی ړانـدهٔ دی مـحـمـده ! ﷺ
ستـــا دَ لارنـــه چـې بـې لارې پـــه دُنیـــا شـــی
پـــه دُنیـــا دا غـلـط تـلـــهٔ دی مـحـمـده ! ﷺ
چـــې ستـــا دیـن او طـریـقـې نـــه خبـر نـــهٔ وی
هـــغـــه تـــول خـلـق اودهٔ دی مـحـمـده ! ﷺ
چـې دا ستـا مینـه کښـې هـرڅـهٔ تـه تیار دے
دَ احـــمـــد عـــلـــی دا ښـــهٔ دی مـحـمـده ! ﷺ

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

چـې پـه دین دَ مـصـطـفـیٰ ﷺ یـمـه مـئـین
پـــه دُنیـــا کښـــې پـــه رښـــا یـمـــه مـئـیـن
طـــریـقـــه دَ مـحـمـد ﷺ ده زمـــا خـوښـــه
دَ نبـــی ﷺ پـــه هـــر ادا یـمـــه مـئـیـن
دَ نبـــی ﷺ دَ هـــریـو کـــار نـــه زهٔ زاریـــږم
دَ نبـــی ﷺ پـــه هـر ویـنـــا یـمـــه مـئـیـن
زهٔ نسبـــت ســـره دَ پـــاك نبـی ﷺ کـرم مینـــه
پـــه تـعـریف ئـې پـــه هـرخـوا یـمـه مـئـیـن
دَ نبـــی ﷺ دَ تـــعـــلـــق نـــه زهٔ زاریـــږم
راتـــه وایـــه زهٔ پـــه چـــا یـمـــه مـئـیـن
زهٔ دَ حـــق ســـره مـلـګـرے پـــه هـــر دریـم

پــــه دُنیــــا کښــــې پــــه رښتیــــا یـمــــه مـئـیـن
دا د نـــــن خبـــــره نــــــهٔ ده احــــمــــد وائــــــی
پــــــه نبــــی ﷺ زهٔ دَ پـــخــــوا یـمـــــه مـئـیـــن

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

نُــور رنــا قـــراٰن زمــا ، ښــکــلــے دے جــانــان زمــا
داسـے نشـتـه نشـتـه بـل ، څـنګ چې دے سلطان زما
نُــور ئي دَ جهــان دے نُــور ، نُور ئي عالیشان دے نُور
واوره حــق بیـــان زمــــا ، نُـــور دَ هـــر مـکـــان زمــا
نُــور رنــا قـــراٰن زمــا ، ښــکــلــے دے جــانــان زمــا
ښـکـلـے پـه سیـرت سـره ، ښکلے په صورت سـره
دغــــه دے ایـمـــان دے ، دغـــــه دے اعــلان زمــا
نُــور رنــا قـــراٰن زمــا ، ښــکــلــے دے جــانــان زمــا
ښـکـلـے او ښُـکـلا زمـونـږ ، هرځائے رهنما زمونږ
خــور کـــړه دا عــلان زمــــا ، خـور کــړه دا بیـــان زمــا
نُــور رنــا قـــراٰن زمــا ، ښــکــلــے دے جــانــان زمــا
ورتــه مـحـبـوب وائـی ټول ، ورتــه مـطـلوب وائی ټول
ګــل دے دَ ریـــحـــان زمـــا ، ګــل دَ ګــلـسـتــان زمــا
نُــور رنــا قـــراٰن زمــا ، ښــکــلــے دے جــانــان زمــا
نـــور دے دَ هــر یــو سـحـر ، وائـی احــمـد مـخـتـصـر
نُـــور دے دَ مـــردان زمـــا ، نُـــور دَ ټـول جهـــان زمـــا

نُور رڼا قرآن زما ، ښکلے دے جانان زما

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

رهنما دَ نيك او بد دے محمد ﷺ دے
ترجمان دَ ربِ احد دے محمد ﷺ دے
په مخلوق کښې يو دے يو دے
ډير ستائيلے ربِ صمد دے محمد ﷺ دے
خير دے خيرئي طريقه کښې دَ جهان
هر يو کارئي مستند دے محمد ﷺ دے
هر قدم ئې دَ جنت په لاره تلے
دَ فلاح عزت سند دے محمد ﷺ دے
هر وينا ئي ښۀ خوږه ده قدرمنده
ورسره دَ ربَ مدد دے محمد ﷺ دے
په رڼائي دا جهان دے رڼا شوے
رڼا نُور دَ هر لحد دے محمد ﷺ دے
په صورت او په سيرت سره ښائسته دے
دا بيان تول دَ احمد دے محمد ﷺ دے

## نعتِ مصفیٰ ﷺ

څوك چې دلته کښې ستا يار دے بختور دے
څوك چې دلته ستا په لار دے بختور دے
بختور دے چې سنت سره کړي مينه

څوك چي ستا په نُور انوار دے بختور دے
بختور دے چي ستا دین سره كړي مینه
ستا چي دلته تابعدار دے بختور دے
څوك چي ستا په لارروان دی نۀ خوارېږي
څوك چي ګل ستا دَ ګلزار دے بختور دے
څوك چي ستا دَ هر ادا نه قربانېږي
څوك چي تا سره بیدار دے بختور دے
بختور دے ستا په نُور كښي غوپه شوے
څوك چي تا سره په دار دے بختور دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

اعلیٰ اعلیٰ ده مرتبه دَ مدنی جانان
ده خوشبوداره مدینه دَ مدنی جانان
ده خوشبوداره مدینه په محمد عربی ﷺ
ده خوندوره قصیده دَ مدنی جانان ﷺ
دغه قرآن چي ترقیامته پوري دلته به وي
قسم دے دا ده معجزه دَ مدنی جانان ﷺ
ورځي رڼا دی دَدُنیا په محمد عربی ﷺ
رڼا رڼا ده هره شپه دَ مدنی جانان ﷺ
ټول صفتونه مدینه كښي دَرسول اللّٰه ﷺ دی
دَ نور نه ډكه ده كوڅه دَ مدنی جانان ﷺ

کـۀ عـجـمـان دی کـۀ عرب دغـه منی پـه جمع
هــر ځــائـے ده دلتــه دبدبــه دَ مـدنـی جـانـان ﷺ
احـمـده ! څـومره چي یاران دَ مـصـطـفیٰ دلتـه دي
ده دَ ګـلـونـو ګـلـدستـــه دَ مـدنــی جـانـان ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

تـــۀ امـام الانبیــاء ﷺ ئــي تــۀ امـام الاولیـاء ئـي
عـقـیـده لــرمــه دغـــه ، نـورانـی ئـي نُـور رنـا ئـي
هم بشر ئي پیغمبر ﷺ ئي ، افسرانو کنبي افسر ﷺ ئي
پـه تیـرو کنبـي یو رنـا ئـي ، مـقـتدا ئـي رهنما ئـي
تـــۀ امـام الانبیــاء ﷺ ئــي تــۀ امـام الاولیـاء ئـي
هـم سـخــی ئـي دَ جهــان ، نُـور لـرے دغــه قـرأن
دَ هـریـو چـمـن ښـکـلا ئـي ، رالیـږلـے ربّ مولیٰ ئـي
تـــۀ امـام الانبیــاء ﷺ ئــي تــۀ امـام الاولیـاء ئـي
ستا صفت دَ صداقت شته ، طریقه دے نُور سنت شته
مـنـفــرد پـــه هــر ادا ئـي ، رنځـورانـو لــه دوا ئـي
تـــۀ امـام الانبیــاء ﷺ ئــي تــۀ امـام الاولیـاء ئـي
تـۀ ئي سیـورے دَ رحـمـت ، تـۀ ئي سیورے دَ عزت
داسے یاد په دي دُنیا ئي ، مصطفیٰ ئي مجتبیٰ ﷺ ئي
تـــۀ امـام الانبیــاء ﷺ ئــي تــۀ امـام الاولیـاء ئـي
ستا صـفـت هـم امـانت شته ، ستا کامله شریعت شته

دَ احمد پاکه وينائي، دا وينا دلته صفائي
ته امام الانبياء ﷺ ئي ته امام الاولياء ئي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

تا راوړلے دے قرآن
محمده ! ﷺ عاليشان
وائے وائے په جهان
راليږلے پاك سبحان
دا باعث دَ هر عزت
دا باعث دَ برکت
دا باعث دَ هر رحمت
دا باعث دَ هر نعمت
دا هادي دے دَ انسان
رهنما دَ مسلمان
تا راوړلے دے قرآن
محمده ! ﷺ عاليشان
وائے وائے په جهان
راليږلے پاك سبحان
تلاوت ئي دے واجب
ښه ښائسته ښه مناسب
په کښي شته دے عجائب

پــــــه اُستـــــاد او پــــــه طـــالـــب
دا دے نُـــورد هــــرايـــمـــان
داســــے وائـــي عــــالـــمــان
تـــــا راوړلـــــے دے قـــــرآن
مـــحــــمــــده ! ﷺ عـــالــيشــــان
وائـــــے وائــــے پـــــه جهـــان
رالـيـــــوړلـــے پــــاك سبـــحــــان
پــــــه دي شتـــــــه اجــــر وثـــواب
ډيـــــر عـــــالـــي دے دا كتـــــاب
بهتــــريـــن دے پـــــه هـــريـــاب
ده رڼـــا الـــكـــــه آفتــــاب
دا دے وزن د ميـــــــــــــــزان
دا دے فـــضـــل د رحـــمـــان
تـــــا راوړلـــــے دے قـــــرآن
مـــحــــمــــده ! ﷺ عـــالــيشــــان
وائـــــے وائــــے پـــــه جهـــان
رالـيـــــوړلـــے پــــاك سبـــحــــان
دغـــــه خيـــــرد هـــــر بشـــــر
دغـــــه نُـــورد هـــــر نـــظـــر
دغـــــه نُـــورد هـــر ســـحـــر

احمد وائي مختصر
خپور کړه خپور کړه دا بیان
اُوکړه اُوکړه دا اعلان
تا راوړلے دے قرأن
محمده ! ﷺ عالیشان
وائے وائے په جهان
رالیږلے پاك سبحان

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

هریو بدعتی سړے دَ دین سره وفا نهٔ کړي
هغه په دُنیا کښې دَ سنتو اقتدا نهٔ کړي
هغه هرشیطان او شیطانت سره کوی مینه
کاربه دَ عزت دَ محبت په دې دُنیا نهٔ کړي
څوك چې دَ شیطان په شیطانت پسے وهی منډې
دغه بې حیا دے چې دُنیا کښې څوك حیا نهٔ کړي
څوك چې دَ بدی او د بدعت سره کوی مینه
دا انسان به هیڅ کله باطل نه حق جُدا نهٔ کړي
چا چې وی ساتلی شیطانان ملګری دلته کښې
هغه په دُنیا کښې دَ نیکانو ملګرتیا نهٔ کړي
درپه دربه ګرځی اے احمده ! بدعتی سړے
بل به وی هغه بشر چې ځان نه ربَ رضا نهٔ کړي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ځوك چې پیروي دَ محمد رسول اللّٰه ﷺ نۀ کړي
هیڅ کله به بۀ هغه دَ بدونه جُدا نۀ کړي
ځوك چې خپله نۀ کړي طریقه دَ پاك رسول اللّٰه ﷺ
هغه به هیڅ کله قیمتي دغه دُنیا نۀ کړي
ځوك چې دَ نبي ﷺ دَ لار نه ځان کړي ناخبره نن
کار دَ نادانو دے دا کار خو یو دانا نۀ کړي
ځوك چې دَ بدعت لعنت نه بچ نۀ کړي دُنیا کښې ځان
ځان په عبادت به هغه هیڅ کله صفا نۀ کړي
ځوك چې دَ رسول ﷺ مینه په زړۀ نۀ کړي احمده! نن
بچ به په آخر کښې بیا خپل ځان دَ یو بلا نۀ کړي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ما ښکلي ګلونه مدینه کښې چې لیدلي دي
دغه ټول یاران دَ مصطفیٰ ﷺ دَ ښکلي کلي دي
دغه دے صدیقؓ هغه دے یار دَ مصطفیٰ ﷺ دَ غار
دغه دے صدیقؓ هغه دے یار دَ مدینې دَ ښار
دلته دَ دُنیا د درنه دا ګلونه ښکلي دي
دغه ټول یاران دَ مصطفیٰ ﷺ دَ ښکلي کلي دي
ښکلے دے عمرؓ ورته عادل په جهان وائي ټول
ښکلے دے عمرؓ ورته یو ګل عالیشان وائي ټول

دا مـي دَ نیـکـانـو نـه دُنیـا کښې اوریـدلـی دی
دغـه ټول یـاران دَ مـصـطفیٰ ﷺ دَ ښکلی کلی دی
دغـه شـان عثـمـانؓ دے قـدرمنده عـالیشان دے ډیر
دغـه شـان عثـمـانؓ دے عـزتمند په جهان دے ډیر
دغـه فـضـائـل هـریـو عـالـم دلتـه لیـکلـی دی
دغـه ټول یـاران دَ مـصـطفیٰ ﷺ دَ ښکلی کلی دی
شته حـضـرت عـلیؓ هم لـوئي مقام لری په بحر وبر
وائـی احـمـد وائی هر انسان تـرینـه دے ښـهٔ خبر
ښـهٔ خبـر دی څـوك چـي دغـي در تـه نن ورغلـی دی
دغـه ټول یـاران دَ مـصـطفیٰ ﷺ دَ ښکلی کلی دی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مـا چـي دلتـه څـهٔ پـه دې قـلـم بـانـدې لیکلی دی
دغـه فـضـائـل مـي دَ نبـی ﷺ ټول اوریـدلـی دی
یـو دَ امـامـانـو پـه امـام سـره یـادیـږی تـل
دلتـه پـه دُنیـا خیـر الانـام ﷺ سـره یـادیـږی تـل
دلتـه شان اوصـاف دَ پاك نبی ﷺ ښـکلی راغلی دی
دغـه فـضـائـل مـي دَ نبـی ﷺ ټول اوریـدلـی دی
نُـور رنـا دُنیـا کښـي پـه تـمـام سره یـادیـږی تـل
هر ځـائـے هر مـحـفـل کښي احتـرام سره یادیږی تل
داسـے عـالـمـانو تـقـریـرونو کښـي وئیـلـی دی

دغــــه فــضــائل مــې دَ نبــي ﷺ تول اوريدلــى دي
خاتم الـرسـل ﷺ دے په نبيانو کښې اعلىٰ نبي ﷺ
خـورم قسـم هرخـوا تـه داسے نشته په دُنيا نبي ﷺ
ښـار پـه ښـار انـوارئـې دي پـراتهٔ کلي په کلي دي
دغــــه فــضــائل مــې دَ نبــي ﷺ تول اوريدلــى دي
دا مــې اوريــدلــے دَ نيــکــانـو صــالــحــانـو دي
دا مـــې اوريـــدلـــے پـــه دُنيـــا دَ عـــالــمـــانـو دي
دا صفات دُنيا کښې تول گلونه ښائستهٔ ښکلي دي
دغــــه فــضــائل مــې دَ نبــي ﷺ تول اوريدلــى دي
دا مـې اوريـدلـى هـر طـرف تـه پـه دُنيـا کښې دي
وائـــى احـمـد وائـــى اوريـدلـى تـا ويـنـا کښـې دي
داسے عـــالــمـــانـو طـــالـبــانـو تـــه ښـودلــى دي
دغــــه فــضــائل مــې دَ نبــي ﷺ تول اوريدلــى دي

نعتِ مصطفىٰ ﷺ

چــرتــه چـې ذکــر دَ نبيــانـو دَ سـردار ﷺ کيــږي
هــلتـــه نـــزول دَ رحــمـتــونـو بـــار بـــار کيــــږي
هـلتـه رحـمـت دَ پـاس آسـمـانـه پـه هـر در وريـږي
هـلتـه رحـمـت پـه هـر مـکـان پـه هـر بشـر وريـږي
چـرتـه چـې ذکـر دَ حـضـرت خيـر الابـرار ﷺ کيـږي
هــلتـــه نـــزول دَ رحــمـتــونـو بـــار بـــار کيــــږي

هلته سکون او اطمینان په هر بشر وریږي
هلته سکون او اطمینان په هریو در وریږي
فضل وکرم دغه دُنیا کښې په هر دار کیږي
هلته نزول دَ رحمتونو بار بار کیږي
هلته خوشبو دَ ربّ منان نه په هر در وریږي
هلته خوشبو دَ محمد خیر البشر ﷺ وریږي
چرته چې ذکر دَ اللّٰه دَ ښکلي یار کیږي
هلته نزول دَ رحمتونو بار بار کیږي
هلته رڼا دَ هدایت ماښام سحر وریږي
احمده ! هلته هدایت په هریو در وریږي
چرته چې ذکر دَ نبیانو دَ دلدار ﷺ کیږي
هلته نزول دَ رحمتونو بار بار کیږي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

منونکے زۀ دَ دین دَ محمد عربي ﷺ یم
په دین باندې مئین دَ محمد عربي ﷺ یم
په دین باندې مئین یم دَ حضرت خیر الابرار ﷺ
په دین باندې مئین یم دَ دُنیا دَ حسندار ﷺ
په دین سره حسین دَ محمد عربي ﷺ یم
منونکے زۀ دَ دین دَ محمد عربي ﷺ یم
عشاق په هر محفل کښې وهي چغې په دُنیا

امت ووهي دا چغې په دُنيا کښې په هرخوا
قربان زۀ په يقين دَ محمدعربي ﷺ
منونکے زۀ دَ دين دَ محمد عربي ﷺ
وليان دَ زماني کوي هم دغه شان اقرار
هر ګل دَ زماني دغه بيان کوي بار بار
تابع زۀ دَامين دَ محمد عربي ﷺ
منونکے زۀ دَ دين دَ محمد عربي ﷺ
په چغه چغه وائي اے احمده ! ټول جهان
په چغه چغه ټول کوي دُنيا کښې دا بيان
مدّاح زۀ دَ يٰسين دَ محمد عربي ﷺ
منونکے زۀ دَ دين دَ محمد عربي ﷺ

نعتِ مصطفٰی ﷺ

افسرانو کښې افسر دے محمد خير البشر ﷺ
رهبرانو له رهبر دے محمد خير البشر ﷺ
دَ نبيانو چې سردار دے، بل حسينه حسندار
دَ هرچا دَ زړۀ قرار دے، حق دے حق دَ حق ګفتار
نمر دے نمر دے هم قمر دے محمد خيرالبشر ﷺ
رهبرانو له رهبر دے محمد خير البشر ﷺ
په قرآن کښې ئې تعريف دے، ټول جهان کښې ئې تعريف
په اَسمان کښې ئې تعريف دے، لامکان کښې ئې تعريف

دَ بهتــرو نـــه بهتــر دے مـحـمـد خیـر البشـر ﷺ
رهبــرانــو لـــه رهبـر دے مـحـمد خیــر البشــر ﷺ

حق دے حق ئـي هـربیان ، حق دے حق ددي جهان
داســي وائـــی مســلـمــان ، داسے وائـی عـالـمـان
مشك عنبر دے هم نظر دے محمد خیر البشر ﷺ
رهبــرانــو لـــه رهبـر دے مـحـمد خیــر البشــر ﷺ

دَ مولیٰ هغـه محبوب دے ، دَ هرچا هغه محبوب
په دُنیا هغه محبوب دے، په هرخوا هغه محبوب
دلبــرانــو لـــه دلبـر دے مـحـمـد خیـر البشــر ﷺ
رهبــرانــو لـــه رهبـر دے مـحـمد خیــر البشــر ﷺ

هریـو څیـز تـرینـه قربان دے ، دلته پټ دے کۀ عیان
دَ احـمـد دغـه بیـان دے، ټـول فـدا تـرینـه مردان
دَ هـرچـا دَ زړګـی سـر دے محمد خیر البشر ﷺ
رهبــرانــو لـــه رهبـر دے مـحـمد خیــر البشــر ﷺ

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

پـــه لاره زۀ روان دَ مـــحـــمـــد عـــربـــی ﷺ کـــریـــم
د دیـــن زۀ قـــدردان دَ مـــحـــمـــد عـــربـــی ﷺ کـــریـــم

پـه دیـن کښـي ئـي پـرتـي دی رښـاګــاني دَ هردر
پـه دیـن کښـي ئـي پـرتـي دی رڼـا ګــاني دَ بشـر
تــابـع دَ نُـور عـرفــان دَ مـحـمـد عـربـی ﷺ کـریـم

پــــه لاره زهٔ روان دَ مــــحــــمــــد عــــربــــی ﷺ یــــم

پــــه دیــــن کښــــي ئــــي فــلاح د دوجهــــان دَ پــاره ده
پــه دیــن کښــي ئــي فلاح دَ هــرانســان دَ پــاره ده
تــــابــــع زهٔ دَ قــــران دَ مــــحــــمــــد عــــربــــی ﷺ یــــم
پــــه لاره زهٔ روان دَ مــــحــــمــــد عــــربــــی ﷺ یــــم

رنــــا دَ هــــرصــــحــــرا او بیــــابــــان دَ پــــاره ده
رنــــا دَ دي جهــــان بــــره آســــمــــان دَ پــــاره ده
قــــربــــان شــــمــــه قــــربــــان دَ محــمــد عــربــی ﷺ یم
پــــه لاره زهٔ روان دَ مــــحــــمــــد عــــربــــی ﷺ یــــم

هــرخــومــره پــه عــمــل کــه یم کمزورے دَ جهــان
احــمــد عــلــی پــه جــار کــوی دلتــه دا بیــان
مــلــګــرے پــه جهــان دَ مــحــمــد عــربــی ﷺ یم
پــــه لاره زهٔ روان دَ مــــحــــمــــد عــــربــــی ﷺ یــــم

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ نبــی ﷺ پــه مــحبــت، ربَــه! شــکــر هرساعت
دَ نبــی ﷺ پــه نُورسنــت، ربَــه! شکــر هر ساعت

شــکــرشــکــر ستــا دَ ذات، دَ دُنیــا پــه دي حــالات
دَ نبــی ﷺ پــه هــر صــفــت، ربَــه! شکر هرساعت

شــکــرشــکــر خدایــه ستــا، پــه دُنیــا کښي پــه هرخوا
دَ دُنیــا پــه هــر نــعــمــت، ربَــه! شکــر هر ســاعــت

خدایه شکر ستا تمام، دَ دُنیا په هر کلام
دَ ایمان په لوئي دولت، ربّه! شکر هر ساعت
شکر شکر ستا په دین، رهنما دے بهترین
شکر ستا په شریعت، ربّه! شکر هر ساعت
شکر ستا وائی احمد، شکر شکر دَ صمد
شکر ستا په هدایت، ربّه! شکر هر ساعت

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مرحبا خیر الابراره ﷺ مرحبا
مرحبا اے تاجداره ﷺ مرحبا
زار لتانه زار لتانه دا جهان
زار لتانه زار لتانه هر بیان
مقتدا دَ هر چا دَ پاره مرحبا
مرحبا اے تاجداره ﷺ مرحبا
زار لتانه زار لتانه بره نمر
زار لتانه زار لتانه هر سحر
غوره غوره اے دلداره! ﷺ مرحبا
مرحبا اے تاجداره ﷺ مرحبا
زار لتانه زار لتانه زۀ شمه
بي لتانه دلته به زۀ څۀ شمه
اے غمخواره! ﷺ اے غمخواره! ﷺ مرحبا

مرحبا اے تاجداره ﷺ مرحبا
زار لتانه زار لتانه زۀ احمد علی شمه
ستا په لاره ستا په لاره ستا دلته حقیقی شمه
مونږ دَ پاره ستا ده لاره مرحبا
مرحبا اے تاجداره ﷺ مرحبا

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

هر در دے عالیشانه محترم دَ مدینې
مقام دے کائنات کښې مسلّم دَ مدینې
نسبت ورسره دے دَ مُرسلانو دَ سردار
نسبت ورسره دے دَ یتیمانو دَ غمخوار
لیکلے دا مقام دے هر قلم دَ مدینې
هر در دے عالیشانه محترم دَ مدینې
نسبت ورسره دے په هر مقام دَ امامانو
نسبت ورسره دے په هر مقام دَ صادقانو
قسم دے عزت مند دے تول حرم دَ مدینې
هر در دے عالیشانه محترم دَ مدینې
یاران دَ مصطفیٰ ﷺ ددغې دردی ساکنان
یاران دَ مصطفیٰ ﷺ دی تول گلونه دَ جهان
مقام دے دَ هر ځائے نه مُقَدَم دَ مدینې
هر در دے عالیشانه محترم دَ مدینې

آګاه ددي خبري نه دے دغه تول عرب
مقام اُوچت ورکړے په دُنیا کښې زمونږ ربّ
آګاه دَ مرتبې نه دے عالم دَ مدینې
هر در دے عالیشانه محترم دَ مدینې
هر در دے عالیشانه مدینه کښې په نظر
احمد علی خبره دلته تا کړه مختصر
قسم دے دا بیان دے تول مُحکم دَ مدینې
هر در دے عالیشانه محترم دَ مدینې

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښوك چې مدحه دَ نبی خیر الانام ﷺ کړي
ځان لائق به دَ عزت او احترام کړي
شته په مدحه کښې دَ پاك نبی ﷺ ثواب
که ښوك یاد رسول اللّٰه ﷺ سحر ماښام کړي
مدحه کړے دَ رسول ﷺ تولو اصحابوؓ
دغه مدحه په تاریخ کښې هر امام کړي
اولیاء او صالحانو مدحه کړے
هر عاشق کار په دُنیا دغه مدام کړي
دغه مدحه تول عرب او عجم کړے
هوښیار کس دے چې ښوك خپور دغه پیغام کړي
د دُنیا دَ انسانانو ځان خبر کړه

خپل خو خپل دی هم پردي دغه تمام کړي
وظیفه به د جهان کړي تل درود
کۀ خبر ځان د احمد ددي کلام کړي

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

سنت هریو انسان له د نقصان نه بچ کوی
دُنیا کښې مسلمان له د تاوان نه بچ کوی
سنت بله ډیوه ده د انسان د پاره دلته
سنت بله ډیوه ده ټول جهان د پاره دلته
سنت هریو انسان له د شیطان نه بچ کوی
سنت هریو انسان له د نقصان نه بچ کوی
سنت ښۀ طریقه ده د حضرت رسول اللّٰه ﷺ
د نور یوه چینه ده د حضرت رسول اللّٰه ﷺ
سنت هریو بشر له د خزان نه بچ کوی
سنت هریو انسان له د نقصان نه بچ کوی
سنت کښې ښۀ افعال د محمد رسول اللّٰه ﷺ دی
سنت کښې ټول اقوال د محمد رسول اللّٰه ﷺ دی
سنت د هر نادان او بې ایمان نه بچ کوی
سنت هریو انسان له د نقصان نه بچ کوی
سنت ده لاره نیغه په دُنیا کښې د جنت
احمد علی بیان کړه مسلمان ته حقیقت

دَ اور نــه بـچ كـوى دَ بيــابــان نــه بـچ كـوى
سـنـت هـريـو انسـان لـه دَ نقصـان نـه بچ كوى

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

قـرآن او دَ نبـي ﷺ پـه سـنتـونو كښـې فـلاح ده
دُنيـا كښـې هميشـه پـه ښـهٔ كارونو كښـې فلاح ده
فـلاح پسـې كـهٔ گـرځـې دَ جهـان نـو راشـه راشـه
د ديـن پـه دغـې لـويـو كتـابـونـو كښـې فـلاح ده
فلاح پسـې كـهٔ گـرځـې لاړ چې نشـې بل طرف تـه
دَ پـاك رسـول اللّٰـه ﷺ پـه قدمـونو كښـې فـلاح ده
فـلاح پسـې كـهٔ گـرځـې پـه دُنيـا كښـې در پـه در
دَ پـاك نبـي ﷺ پـه مدحـه صفتونو كښـې فلاح ده
فـلاح پسـې كـهٔ گـرځـې دا ده دلتـه ښـهٔ أسـانـه
احـمدعـلى دَ ښـهٔ خـلقـو پـه خويونو كښـې فلاح ده

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ربّـه! پـاك لـه هـر عـنـاد كـړې زمـا روح
پـه سـنـت سـره آبـاد كـړې زمـا روح
دَ سـنـت پـه رنګ چې ښـكـلـى وى رنګ شـوے
بـچ لـه هـر قسـمـه فسـاد كـړې زمـا روح
دَ اسـلام رنـا سـره ښـائستـهٔ ښـائستـهٔ وى
ښـهٔ مـضبـوط لـكـه فـولاد كـړې زمـا روح

دَ اسلام په خوشبوئي ئي خوشبودار کړے
بچ له هر قسمه فرياد کړے زما روح
اطاعت په کښي دَ پاك نبي ﷺ پيدا کړے
پاك له کفره له الحاد کړے زما روح
دا دُعاده دَ احمد على هر ځائے کښي
دَ نيکي دَ کار بُنياد کړے زما روح

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

شۀ خبر دَ محمد ﷺ زۀ ثنا خوان يم
مُتبع زۀ دَ سنت او دَ قرآن يم
دَ اسلام په زور طاقت سره هر ځائے کښي
دَ رستم په شان دُنيا کښي پهلوان يم
په اعمالو زۀ د دين سره ښائسته يم
شکر شکر دے په دي چي مسلمان يم
دَ اعمالو ماسره دي دفترونه
دَ نيکو په لاره دلته کښي روان يم
په اخلاقو دَ نبي ﷺ سره ښائسته يم
زۀ په لاره دَ نبي آخر زمان ﷺ يم
اوُده نۀ يمه زۀ ويښ يم په جهان
په هر ځائے کښي زۀ دښمن دَ هر شيطان يم
دا چي څه يم دلته کښي وائي احمد

دا پــه فـضـل وكــرم دلتــه دَ رحـمـان يـم

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

څــوك چــي د دوجهــان جــانــان ﷺ خفـه كـړي
خــوړ بــه نبــی اٰخــرزمــان ﷺ خــفــه كــړي
څــوك چــي كــارونــه دَ بــدعــت كـوي تـل
څــوك چــي كــارونــه دَ لــعــنــت كـوي تـل
ځــان نــه حسيـن بــه دَجهــان خــفــه كــړي
خــوړ بــه نبــی اٰخــرزمــان ﷺ خــفــه كــړي
څــوك چــي قــران نــه لــرے لــرے تبتــی
چــي مســلــمــان نــه لــرے لــرے تبتــی
د دي دُنيــا بــه مهــربــان خــفــه كــړي
خــوړ بــه نبــی اٰخــرزمــان ﷺ خــفــه كــړي
څــوك چــي ســنتــو تــه كـړي شـا پــه جهـان
څــوك چــي كــارونــه پــه دُنيــا كـوي وران
دَ سـلـطـانـانـو بــه سـلـطـان ﷺ خفـه كـړي
خــوړ بــه نبــی اٰخــرزمــان ﷺ خــفــه كــړي
څــوك چــي ســاتــنــه دَ خپـل ديـن نــهٔ كـوی
څــوك چــي ســاتــنــه دَ حـق اميـن نــهٔ كـوی
هــغــه بــه ګـل دَ ګـلستــان خــفــه كــړي
خــوړ بــه نبــی اٰخــرزمــان ﷺ خــفــه كــړي

څـــوك چـــي حســـد ســـره بـدن كـــړي ګـــنــده
څـــوك چـــي حســـد ســـره وطـــن كـــړي ګـــنــده
هـــغـــه مـــحبـــوب بـــه دَرحـــمـــان خـــفـــه كـــړي
خـــوږ بـــه نبـــي اخـــرزمـــان ﷺ خـــفـــه كـــړي
څـــوك چـــي مـــئـیـن شـــي د الـحـــاد پـــه جـامـــه
څـــوك چـــي مـــئـیـن شـــي دَ فسـاد پـــه جـامـــه
ځـــان نـــه رهبـــر بـــه عـــالیشـــان خـــفـــه كـــړي
خـــوږ بـــه نبـــي اخـــرزمـــان ﷺ خـــفـــه كـــړي
څـــوك چـــي يـــاران دَپـــاك نبـــي ﷺ نـــهٔ مـــنـــي
څـــوك چـــي يـــاران دَمـــدنـــي ﷺ نـــهٔ مـــنـــي
احـــمـــده ! ذات بـــه دَ سبـــحـــان خـــفـــه كـــړي
خـــوږ بـــه نبـــي اخـــرزمـــان ﷺ خـــفـــه كـــړي

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

اخیـــــري وخـــــت دے چـــي قــــراٰن بـــوج شـــو
دغـــــه ســـنـــت پـــه مســـلـــمـــان بـــوج شـــو
دَ خیـــر نـــه تښتـــي مســـلـــمـــان پـــه جهـــان
خیـــر پـــه دُنیـــا كښـــي پـــه انســـان بـــوج شـــو
خیـــر كښـــي لـــذت ددي جهـــان نـــهٔ مـــومـــي
داســـے دا خیـــر پـــه هـــر مـــكـــان بـــوج شـــو
خیـــر ســـره مینـــه دَ جهـــان نـــهٔ كـــوي

خير چې په مونږه دَ رحمان بوج شو
دَخير نه تنګ په دې جهان کښې اُوسی
په چا چې خير دَ پاس اسمان بوج شو
دَ خير په ذکر چې خوشحاله نهٔ شی
په چا چې خير دَ پاك سبحان بوج شو
ورته دَ زړهٔ مينه به څوك نهٔ وائی
په چا دُنيا کښې چې جانان بوج شو
خير خو جانان دے هر انسان دَ پاره
په تا دا ذکر عاليشان بوج شو
احمده! تا خو حق وينا کړې ده
ځکه بيان دے په شيطان بوج شو

نعتِ مصطفىٰ ﷺ

بې له سنته شکلے کيږمه نه
زهٔ له قرآن نه جُدا کيږمه نه
دغه قرآن دغه برهان دَ رب
بې له دې دينه زهٔ بچ کيږمه نه
زهٔ دَ رحمان هره خبره منم
زهٔ په شيطان پسے ژړيږمه نه
زهٔ په خپل دين باندې مئين يمه ډير
بې له دې دينه زهٔ ياديږمه نه

تــــل وسيـــلـــــه زۀ دَ قـــرأن لـــرمـــــه
عبـــث دُنيــــا كښــي زۀ اُوسيــــږمـــــه نـــه
يـــو وسيـــلـــــه زۀ دَ ســـنــــت لـــرمـــــه
زۀ دَ بـــدعـــت ســـره اُودريــــږمـــــه نـــــه
پـــه هــر عــمـــل كښــي دَ نبـــى ﷺ مـنـمــه
دَ هـــر ابـلـيـــس شيـــطـــان خـوښيــږمــه نـــه
د ديـــن پـــه سـختــه بـــانـدي زۀ مــئين يـم
راشــــه پـــه دي زۀ خـــفـــه كيـــږمـــه نـــه
عـــلاج پـــــه دي دَ زړۀ كــــوومـــــه دلـتــه
بـــي مـــحــمـــده ! ﷺ زۀ جــوړيـــږمـــه نـــه
بـــي مـــحــمـــده ! ﷺ زۀ احــمــد بـــه څـــۀ كـــړم؟
تــولـــي دُنيــــا بــــانـــدي رغيـــږمـــه نـــه

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

خوښ مي دى سنت دَ هر بدعت سره مي نۀ لګى
خوښ مي شريعت دے شرارت سره مي نۀ لګى
خوښ مي ښۀ عادات دى ، خرافاتو نه نفرت كوُم
خوښ مي حسنات دى ورسره زۀ محبت كوُم
خوښ مي محبت دے دَ نفرت سره مي نۀ لګى
خوښ مي دى سنت دَ هر بدعت سره مي نۀ لګى
خوښ مي هريو نُور دے دَ ظلمت نه لرے لرے يم

خورم قسم شیطان نه شیطانت نه لرې لرې یم
خوښ مې هدایت دې، ضلالت سره مې نهٔ لګی
خوښ مې دی سنت دَ هر بدعت سره مې نهٔ لګی
خوښ مې هر بشر دې چې تابع دَ محمد ﷺ وی څوك
خوښ مې هر افسر دې چې تابع دَ محمد ﷺ وی څوك
پاك سره کړم مینه، نجاست سره مې نهٔ لګی
خوښ مې دی سنت دَ هر بدعت سره مې نهٔ لګی
خوښ مې هر فرمان دې دَ رسول ﷺ، وائی احمدعلی
خوښ مې هر مکان دې دَ رسول ﷺ، وائی احمدعلی
دغه در مې خوښ دې بل صفت سره مې نهٔ لګی
خوښ مې دی سنت دَ هر بدعت سره مې نهٔ لګی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دَ بدعت نه مې توبه، دَ ظلمت نه مې توبه
ربَه! راکړې نُور سنت، ضلالت نه مې توبه
ربَه! راکړې سعادت، په هر ځائے کښې هر ساعت
ربَه! راکړې محبت، په هر ځائے کښې هر ساعت
دَ نفرت نه مې توبه، دَ لعنت نه مې توبه
ربَه! راکړې نُور سنت، ضلالت نه مې توبه
ربَه! راکړې نُور رڼا، په دُنیا کښې په هر خوا
ربَه! راکړې حق وینا، دا زما ده التجا

عداوت نه مې تويه، هر غفلت نه مې تويه
ربه! راكړې نُور سنت، ضلالت نه مې تويه
راكړئ راكړئ ښكلي دين، چې هرڅوك وي پرې مئين
هم ايمان وي هم يقين، ښهٔ بهتر وي بهترين
دَ ذلت نه مې تويه، شيطانت نه مې تويه
ربه! راكړې نُور سنت، ضلالت نه مې تويه
ربه! راكړئ نيغه لار، دَ نبيانو دَ سردار ﷺ
د احمد دے دا ګفتار، وائي هر ځائے كښې په جار
شرارت نه مې تويه، بغاوت نه مې تويه
ربه! راكړې نُور سنت، ضلالت نه مې تويه

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

زما تل دے په نبي ﷺ وي سلامونه
چې وريږي په مزارئې رحمتونه
چې خوله كښې خوشبوئي دَ دوجهان ده
خوشبودار دي په دوي سره تول ګلونه
لوئي عظمت ئې دَ مكې دَ ښكلي ښار دے
جمع كړي مدينې ئې بركتونه
تول ياران ئې بره ستورې دَ آسمان دي
ښائسته كړي د دُنيائي چمنونه
دَ جنت يوه ټكړه ځكه يادېږي

پــاك نبــي ﷺ دلتــه دي ايښــي قـدمـونـه
پــه اخـلاقــو دَ جهــان هـغــه ممتــاز دے
بيـــانـــونـــه دَ دُنيــا ئــي دي لـعـلـونــه
هــر صـفــت ئـي پــه دُنيـا الـكـه دَ ګـل دے
تــا احــمـد تـــريـنــه جـوړ كـــړي اميـلـونــه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

چـــي څـــوك تــل وائـــي درود ســـره ســلام
پـــه دُنيـــا كښــي بـــه نـصيـب ئــي شــي آرام
دَ دُنيـــا دَ هـــر دولـــت نـــه لـــوئــي دولــت دے
دَ دُنيــا دَ هــر نـعـمــت نــه لـوئــي نعـمـت دے
لـوئــي دولــت دے لـوئــي نـعـمـت دلتـه تمام
چـــي څـــوك تــل وائـــي درود ســـره ســلام
ښـــهٔ خبــر تـــريـنـــه مـؤمـن دے مسـلـمـــان
چـــي دا حُســـن پـــه دُنيـــا دے دَ انســـان
بهتـــريـــن دے ذكــــر دلتــــه دا مُــــدام
چـــي څـــوك تــل وائـــي درود ســـره ســلام
ورتـــــه وائـــــي دَ دُنيـــــا دَ در رنــــا
ورتـــه وائــــي دَ هــــر خـــوا دَ در رنــــا
داســـے وائــي پـــه دُنيـــا كښـــي خـــاص عـــام
چـــي څـــوك تــل وائـــي درود ســـره ســلام

دا اذكار كښې عالي ذكر دے ياد
په دُنيا كښې تل علاج دے دَ فساد
وكړۀ وكړۀ دغه ذكر ګام په ګام
چې څوك تل وائي درود سره سلام
ربَ سكون په دې كښې ايښے په جهان
دَ احمد على واضحه دے بيان
دَ محشر په ورځ اُوچت لري مقام
چې څوك تل وائي درود سره سلام

نعتِ مصطفیٰ ﷺ

دا نوراني ښۀ طريقه دَ چا ده؟
ښۀ بهترينه نمونه دَ چا ده؟
ښۀ هر كردار په دې جهان دَ چا دے؟
دغه اُسوه ښۀ حسنه دَ چا ده؟
دغه انوار په ټول جهان دَ چا دي؟
دا دَ انواريو چينه دَ چا ده؟
دَا دَ خوشبو هر ځائے اثر دَ چا دے؟
دا خوشبوداره سلسله دَ چا ده؟
دغه چمن دَ مدينې دَ چا دے ؟
په كښې ښائسته ښكلے روضه دَ چا ده؟
ښۀ ترے خبر ئې اے احمده ! څوك دي؟

دلتــــه تـــا کــــړے تــذکـــره دَ چـــا ده؟

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ژونـدون لــه دَ انسـان د دغــه دین نشــه کـافــی ده
هــر چـا لــه دَ جهـان ددغــه دین نشــه کـافــی ده
کـــافـــی دغـــه سُـــرور دے هـــر بشـــر لـــره دَ دیـــن
هـــر چـــا لـــه دَ ایمـــان د دغـــه دین نشـــه کـافـــی ده
هـــر روح لـه دَ جهـان پـه کښـي سکون دے دَ انسان
هـــر چـــا لــــه دَ قــــرآن ددغــــه دین نشــــه کـافـــی ده
هـــر څوك پـه دي خوشـحالـه دَ جهان دے پـه هر در
هـــر چـــا لـــه پـــه هـــر آن د دغـــه دین نشـــه کـافـــی ده
احـــمـــدعـــلـــی ښـائستـــه د دغـــه دین نشـــه نشـــه ده
هـــر چـــا لـــه دَ بیـــان ددغـــه دیـــن نشـــه کـافـــی ده

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مـال زمـا ، دُنیـا زمـا ، هـر ځـائـے پـه هر خوا زما
هـــغـــه دلتـــه دا زمـــا ستـــا نـــه شـــۂ فـدا زمـا
کـــور زمـــا وطـــن زمـــا، دغـــه تـــن ، چـمـــن زمـا
اے خیـــر الـــوریٰ ﷺ زمـــا اے نـــور الهـدیٰ زمـا
هـــغـــه دلتـــه دا زمـــا ستـــا نـــه شـــۂ فـدا زمـا
دغـــه مـــور او پـــلار زمـــا، دغـــه رشتـــه دار زمـا
دغـــه ده صـــدا زمـــا، حـــقـــه ده ویـــنـــا زمـــا

هغه دلته دا زما ستانه شۀ فدا زما

دغه هر سحر زما دغه مازیګر زما

اے بدرالدجیٰ ﷺ زما، اے شمس الضحیٰ ﷺ زما

هغه دلته دا زما ستانه شۀ فدا زما

زۀ احمد خو ستایمه، ستانه تل فدا یمه

ده پاکه وینا زما، ده وینا صفا زما

هغه دلته دا زما ستانه شۀ فدا زما

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

محبوب دُنیا کښې دَ احد دے

څوک دے دا څوک دے محمد ﷺ دے

ذکر ئې رب پسے راغلے

لکه دَ ګل په شان دے ښکلے

دا محمد ﷺ دے دا احمد ﷺ دے

څوک دے دا څوک دے محمد ﷺ دے

سیرت کامل ئې دَ جهان دے

نُور ئې دُنیا کښې عالیشان دے

مددګار هر څائے ئې صمد دے

څوک دے دا څوک دے محمد ﷺ دے

یٰسین طٰه سره یادیږی

په مصطفیٰ ﷺ سره یادیږی

دَربَ ورسره تل مدد دے

خوك دے دا خوك دے محمد ﷺ دے

صادقه یاد په تول عرب دے

عالی دنیا كښې په نسب دے

پاك له هرعیبه له حسد دے

خوك دے دا خوك دے محمد ﷺ دے

تذكره كړے ئي احمد ده

دا تذكره دَ محمد ﷺ ده

تل دَ تعریف ئي دلته حد دے

خوك دے دا خوك دے محمد ﷺ دے

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ورته رښا ورته حیا ورته وفا وائی

ورته محبوب په دې دُنیا كښې دَ مولیٰ وائی

ورته مهتاب ورته آفتاب ورته ګلاب وائی

ورته حسین دَ كائنات دَ هریو باب وائی

ورته دانا ورته رښتیا ، حق وینا وائی

ورته محبوب په دې دُنیا كښې دَ مولیٰ وائی

ورته افسر ورته دلبردَ هریو دروائی

مشك عنبر ورته نظرد هر بشر وائی

ورته طٰه او مصطفیٰ خیرالوریٰ ﷺ وائی

ورته محبوب په دي دُنیا کښي دَ مولیٰ وائی

ورته رحمت ورته عزت ورته همت وائی

ورته نعمت ورته برکت تل هرساعت وائی

ورته پیشوا یو رهنما نورالهدیٰ ﷺ وائی

ورته محبوب په دي دُنیا کښي دَ مولیٰ وائی

ورته حیات ، ورته نجات دَ هر انسان وائی

ورته حیات ، ورته نجات دَ ټول جهان وائی

ورته دوا ورته اشنا ورته صبا وائی

ورته محبوب په دي دُنیا کښي دَ مولیٰ وائی

ورته محبوب ورته مطلوب دَ هرعالم وائی

ورته مکتوب احمده ! هرځائے محترم وائی

ورته دُعا ورته ښُکلا دَ انبیاء وائی

ورته محبوب په دي دُنیا کښي دَ مولیٰ وائی

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

مینه کوه دَ مصطفیٰ ﷺ دَ غلامانو سره

د محمد رسول اللّٰه ﷺ دَ امتیانو سره

دغه ده مینه چي انسان ورسره ښکلے ښکاری

دغه ده مینه مسلمان ورسره ښکلے ښکاری

مینه لازم ده دَ محبوب دَ عاشقانو سره

د محمد رسول اللّٰه ﷺ دَ امتیانو سره

دا لوئي دولت دے چي د چا خلقه ! نصیب شي دلته
دا لوئي نعمت دے چي دَ چا خلقه ! نصیب شي دلته
مینه کوه دَ پاك رسول اللّٰه ﷺ یارانو سره
د محمد رسول اللّٰه ﷺ دَ امتیانو سره
کار دَ ثواب په دي جهان کښي داسے بل به نۀ وي
کار لاجواب په دي جهان کښي داسے بل به نۀ وي
مینه همیش کوه دُنیا کښي دَ نیکانو سره
د محمد رسول اللّٰه ﷺ دَ امتیانو سره
دا په نصیب باندي انسان ته ملاویږي دلته
دا په نصیب هر مسلمان ته ملاویږي دلته
مینه کوه دَ تقویٰ دارو عالمانو سره
د محمد رسول اللّٰه ﷺ دَ امتیانو سره
مینه عطا ده دَ مولیٰ چي چاله ورکړي ربَ
وفا وفا ده دَ مولیٰ چي چاله ورکړي ربَ
احمده ! مینه کړۀ دُنیا کښي صادقانو سره
د محمد رسول اللّٰه ﷺ دَ امتیانو سره

پاتي دُنیا

پاتي ده پاتي له هر چانه دا نیمګړي دُنیا
پاتي ده پاتي مصطفیٰ ﷺ نه دا نیمګړي دُنیا
پاتي شوه پاتي دا دُنیا دَ مُرسلانو نه هم

پـاتـے شوه پـاتـے دا دُنیـا متـقیـانو نـه هم
پـاتـي ده پـاتـي اولیـاء نـه دا نیمګـړي دُنیـا
پـاتـي ده پـاتـي لـه هـر چـانـه دا نیمګـړي دُنیـا
تـول اصـحـابٌ تـرینـه دي تـلـی اٰخرت طرف تـه
دَ دوي احبـاب تـرینـه دي تـلـی اٰخرت طرف تـه
پـاتـي ده پـاتـي لـه پارسا نـه دا نیمګـړي دُنیـا
پـاتـي ده پـاتـي لـه هـر چـانـه دا نیمګـړي دُنیـا
شـاهـان تـرې لاړل خـالـی لاس د دې جهان دغـه تول
امیـران لاړل خـالـی لاس تـرې عـالیشان دغـه تول
پـاتـي ده پـاتـي هـر دانـه نـه دا نیـګـړي دُنیـا
پـاتـي ده پـاتـي لـه هـر چـانـه دا نیمګـړي دُنیـا
امـامـان دلتـه هـمیشـه خو پـاتـے شوی نـهٔ دی
عـالـمـان دلتـه همیشـه خو پـاتـے شوی نـهٔ دی
پـاتـے دَ ځـوان نـه ده بُـدهـا نـه دا نیمګـړي دُنیـا
پـاتـي ده پـاتـي لـه هـر چـانـه دا نیمګـړي دُنیـا
دا هـر انسـان نـه پـاتـي شوي ځـان خبر کـړه تـرینـه
دا دَ هـرخـان نـه پـاتـي شوي ځان خبر کـړه تـرینـه
احـمـده پـاتـے ده لـتـانـه دا نیـمـګـړي دُنیـا
پـاتـي ده پـاتـي لـه هـر چـانـه دا نیمګـړي دُنیـا

★★★★★★

## دُعا (دَ حقیقي میني سوال)

ماسره چي ستا مینه وي تاسره زما مینه
ربَه! راله راکړئ په دُنیا کښي دلته دا مینه
تاسره وفا کومه ستا په لار روان یمه
ربَه! درنه غواړمه دُنیا کښي دَ عقبیٰ مینه
ستا دَ شریعت دَ هریو کار پوره پابند وِمے زهٔ
دین سره زما ومے په دُنیا دَ مصطفیٰ ﷺ مینه
شرك او دَ بدعت نه لرے لرے په جهان کښي ومے
ربَه ستا توحید سره مي دلته وِمے پیدا مینه
کار دَ شیاطینو نه نفرت کوُلے ماپوره
ربَه تاسره مي حقیقي ومے په رښتیا مینه
خُله کښي مي خوږي خبري هرځائے په جهان کښي ومے
تولـه دَ احمد وِمے مجسَمه دا وینا مینه

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

چاته چي نهٔ ښکاري دَ نبي ﷺ رڼا
هغه دے محروم دَ ابدي رڼا
ډیر شته چي سنت ته نظر نهٔ کوي
نهٔ خوښوِي دغه بدعتي رڼا
دا چي په دې زمکه ښائستهٔ نور وینې
دا ده په دُنیا دَ هاشمي ﷺ رڼا

تـــا چـــي دَرســـول مينـــه پـــه زړهٔ کښـــي کـــړه
دا ده پـــــه دُنيـــــا کښـــــي حـــقيـــقـــي رنـــا
تـــــا چـــــي دَ ســـنـــت لاره اختيـــار کـــړلـــه
دا ده قـــــدر مــــنـــــده دَ مـــــکــــــی رنـــــا
تـــا چـــي شـــريـــعـــت دَ نبـــی ﷺ ومـــنـــهٔ
دا ده ښـــهٔ ښـــائستـــهٔ دَ عـــربـــی ﷺ رنـــا
تـــا چـــي احـــکـــامـــات ددين مـــنـــلـــی دی
دا ده حـــقيـــقـــی دَ مـــدنـــی رنـــا
تـــا چـــي هـــر ولـــی دَ دين مـــنـــلـــے دے
دا ده دَ نبـــی دَ صـــحـــابـــی رضي الله عنه رنـــا
هـــريـــو صـــحـــابـــیؓ ددين يـــو ستـــورے دے
دا چـــي ښـــکـــاری دلتـــه مـــذهبـــی رنـــا
هـــر ځـــائـــے شتـــه دَ پـــاك رسول ﷺ دَ يـــار رنـــا
دغـــه دَ عـــمـــرؓ عثـــمـــانؓ عـــلـــیؓ رنـــا
مـــا احـــمـــد قـــرآن ســـنـــت مـــنـــلـــے دے
دا ده حـــقيـــقـــی دَ افـتـــی رنـــا

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

ښکلے صورت دَ مصطفیٰ ﷺ دَ ښوارلسمي سپوږمی
رنـا رنـا رنـا ده پـه هرخـوا دَ ښـوارسمي سپـوږمـی
نشتـه دے نشتـه پـه کښـي عيـب دا ده بي عيبه تولـه

لیدلي دلته ده چې چا دَ څوارلسمي سپوږمۍ
هریو ساعت ئې په وجود باندې خندا پرته ده
داسې ده دلته کښې پیدا دَ څلوارلسمې سپوږمې
په خپل سیرت اوپه صورت باندې ښائسته شۀ تول
داسې ده هرچا ته ګویا دَ څوارلسمې سپوږمې
په کښې تعلیم دَ نفع پروت دے هر بشر دَ پاره
دا دے اثر په دې دُنیا دَ څوارلسمې سپوږمۍ
په کښې فائده دَ هر ماشوم بوډا او ځوان دَ پاره
دا ده احمده ! ستا وینا دَ څوارلسمې سپوږمۍ

دَمصطفیٰ ﷺ لاره

ښۀ ده چې مونږه یو روان دَ مصطفیٰ ﷺ په لاره
مونږه به نۀ ځے لویه خدایه دَ بل چا په لاره
دَ ظالمانو شیطانانو نه مونږ لرے ساتے
خدایه ! ملګري ساتے مونږ دَ اولیاء په لاره
دَ بدکردارو بداخلاقو ملګرتیا چې نۀ وی
زمونږ نصیب کړے دَ نیکانو ملګرتیا په لاره
دَ شرابیانو او سودخورونه چې لرے یمه
ربّه ! دُنیا کښې رالــه راکړه دا تقوئ په لاره
دَ بدعتیانو مشرکانو ملګرتیا ښه نۀ ده
لرے کړه دوی نه ما هم دلته دَ دُنیا په لاره

دَ غلاګرانو زناکارو ملګرتيا بنه نه ده
خدايه! مابوځې په دُنيا کښې دَ حيا په لاره
دَ مونځ ګزارو په ټولی کښې ماشامل کړې ربّه!
وائی احمد رالـه تـه راکـړې تـل رښتيا په لاره

## نعتِ مصطفیٰ ﷺ

خوږ دې ډير حسين آواز
هر ځائې کښې د دين آواز
دا زمونږ دَ رَبّ فرمان
دا احمد امين ﷺ آواز
خوږ دې دَ دُنيا الله ساز
ښکلې په اخر آغاز
خورم قسم دُنيا کښې ډير
دا دې بهترين آواز
زړه له اطمنان دې دا
داسې په جهان دې دا
ډک له ميني نه دې دا
نشته بل حسين آواز
دا دَ زړه علاج دوا
داسې وائی علماء
دا دَ اوْلياؤ آواز

دا دَ آخــــــــــــــــريــــــــــن آواز
دا پيــــــــغـــــــام دَ ربَ دے حـــــــق
دا اســــــــــــــلام دَ ربَ دے حــــــــــــق
داســــــي هـــــر مـــــؤمـــــن وائـــــى
دَ قـــــــــــــــــران مبيــــــــــــن آواز
خــــــــوش دَ هــــــــر بــــــــوډا اوځـــــوان
خــــــوش دَ هــــــريــــــو مســــــلـــــمــــــان
وائـــــــــــى احـــــــمـــــــد وائــــــــــى دا
دا دے دَ يَسيــــــــــــــــــــــــــــن آواز

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

دغــه صـفـات دَ مـصـطـفىٰ ﷺ راتــه نـن چا ووئيـل
مــا دَ قــراٰن نـــه تپـوس وكـړه وے وے مــا ووئيل
مـا كښي خـو ساه دَ مـحمد ﷺ له مخه ربَ ايښي ده
پـــه هــر گــلــزار كښي هريو گــل راتــه بيــا دا ووئيـل
دَ دُنيــا ټــول چـــي صــفـتـونــه كـړي راجـمـع ځـوك
دغــه دَ پــاك نبـى ﷺ صــفـت دے عـلـماء ووئيـل
دَ مـحبـت لاره ښـودلـي مـونـږ تـه پـاك نبى ﷺ ده
مـــاتـــه خپـــلـــوانـــو او دوستـــانـــو دَ دُنيـــا وئيـــل
زمــكــه آسمان ئـي دي لــه مـخـه پيدا شوى دلته
احـمـده! دلتــه تـــا تــه هر چا پـه هرخوا ووئيـل

## نعتِ مصطفىٰ ﷺ

چا چي ښکلے سترګي دَ رسول الله ﷺ ليدلی دي
بيـا ئـي ورتـه سـتـرګـي دَ دُنيا خپلي نيولـی دي
مينـه مينـه تـولي ښکلے سترګي دي دَ پاك نبی ﷺ
مـا دَ عـلـمـاء نـه پـه دُنيـا کښـي اوريدلـی دي
هغـه بـه دُنيـا کښـي بـل مـقـام پسے اُونهٔ ګـرځـی
چا چي مدينه کښي خپلي سترګي غړولی دي
لـوئـي مـقـام لـری دا عـقـيـده هـريـو مؤمن لـری
دا خبـري تـولـي نـن اغيـارو هـم مـنـلـی دي
اے احمده ! هيڅ کله به نهٔ شی ترينه هيري بيا
چـاچـي پـه دُنيـا کښي ورتـه يو واري کتلی دي

★★★★★★★★★★

تـمـت بـحـمـد الله تعالىٰ وبتوفيقه . ربنا تقبل منا انك
انت السميع العليم وتب علينا انك انت التواب الرحيم
وصلى الله تعالىٰ علىٰ خير خلقه محمد واله واصحابه
اجـمـعـيـن . اٰمين يـارب الـغـلـمـين يـارب الـغـلمين

1438 / 09 /20 مطابق 13 جون 2017

## دَ مولانا احمدعلي مردانی نورچاپ شوي کتابونه

★ **معدن البيان في ترجمة القرآن**
دَ قرآن کريم دَ بعضي سورتونو پښتو منظومه ترجمه

★ **قواعد النحو**
دَ علم النحو ټول قواعد په پښتو نظم کښي

★ **ګلدسته دَ تجويد**
دَ تجويد اهم او ضروري قواعد په پښتو نظم کښي

★ **ګلدسته دَ اُصول حديث ﷺ**
دَ اُصولِ حديث تذکره په پښتو شعرونو کښي

★ **لُبُّ اللباب يعني خاصيات ابواب**
خاصياتِ ابواب په پښتو شعرونو کښي

★ **دَ مونځ تعليم**
دَ مونځ ټول مسائل په پښتو شعرونو کښي

★ **رڼا دَ سحر** (صدارتی ایوارډ یافته 2016ء)
پښتو نعتونه

★ **دَ زړهٔ سکون** (صدارتی ایوارډ یافته 2017ء)
پښتو نعتونه

★ **ښکُلا دَ چمن** (پښتو نعتونه)

★ **سیرت عشرہ مبشرہ ﷺ**

★ **سیرت ائمہ اربعہؒ**

★ **انمول موتی** (ترتیب احادیث کے اعتبار سے ایک منفرد کاوش)

ناشر: اسلامي ادبي ټولنه يونيورسټي روډ مردان